# القول الأظهر

## پښتو شرح

## د الفقه الأكبر

للامام الاعظم ابی حنیفة النعمان رحمه الله



تألیف

أحقر العباد ابی منصور

عبدالکریم شهیدزاده

الناشر

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

# کفایت دینی کتب خانہ

حنفی　شافعی

## کفایت اللہ ابن صدیق

واٹس ایپ گروپ ٹیلی گرام چینل

اس گروپ میں کتابیں اہل السنۃ والجماعت، حنفی، شافعی، مالکی، حنبلی، دیوبند ، علماء حق کے عقائد کے مطابق ہوں گی مختلف زبانوں میں اسلامی کتابیں پشتو عربی اردو فارسی جیسے تفسیریں، فتاویٰ درسی کتب خارجی کتب و غیرہ۔

easypaisa

کفایت اللہ ابن صدیق

+923052488551
+923247442395




مالکی　حنبلی

ماشاء الله

# القول الأظهر

## پښتو شرح

## د فقه الاکبر

للامام الاعظم ابی حنیفة النعمان رض

تألیف

أحقر العباد ابی منصور
عبدالکریم شهیدزاده

الجامعة کتب خانه
کندهار سپین بولدک
۰۷۰۴۴۴۷۷۳۸

## کتاب پېژندنه:


دکتاب نوم.............................القول الاظهرشرح الفقه الاکبر

دمصنف نوم................................ عبد الکریم شهیدزاده

دمخونو شمار..................     ۲۲۰

دچاپ کال ......................(۱٤٤۲ه ق) الموافق(۲۰۲۱م)

خپرونکی............................ الجامعة کتب خانه کندهار بولدک

دتماس شمیره ......................... ۰۷۰٤٤٤۷۷۳۸

دشرح باعث .................... مولوي حکیم الله حماد

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمدالله الذى خلق الاشياء لامن شى وجعل الثقلين منها مكلفين بالايمان والصلوة والسلام على رسوله الذى قال ان الايمان أن تؤمن بالله وملائكته وكتبه ورسله واليوم الاخر وتؤمن بالقدر خيره وشره وعلى أله واصحابه الذين امنوا به وبكتابه الذى انزل عليه وبعد دهر علم ترشروع كولو مخكې يوخوشيان پېژندل ضروري دي تعريف دهغه علم اوموضوع .غرض دهغه علم

## تعريف دعلم كلام

علامه سعد الدين تفتازاني په شرح المقاصد كي دعلم كلام تعريف داسي كړى ده الكلام هو العلم بالعقائدالدينية عن ادلة اليقينية يعني علم كلام علم ده پرعقائدو دينيه باندي چې هغه علم حاصل وي له داسي دلائلو څخه چې هغه مفيد وي يقين لره، عضد الدين الايجى وايي هغه علم ده چې په هغه سره حاصليږي يوچاته قدرت ددې چې ثابت كړي عقائد دينيه او دفعه كړي شبهې په واسطه دلائلوسره. وجه دتسمې ني داده چې دعلم كلام په مباحثو كي مشهور بحث اوهغه مسئله چې ډيره نزاع ور پكښې سته هغه دالله تعالى دكلام مسئله ده نو څكه په علم كلام سره ونومول سو

## موضوع دعلم كلام

موضوع دعلم كلام هو المعلوم من حيث يتعلق به اثبات الدينية تعلقا قريبا اوبعهدا څكه موضوع دهر علم هغه شى ده چې بحث كيږى په هغه علم كي له احوالو دده شك لسته په دې كښى چې په علم كلام كي بحث كيږي له احوالو دصانع چې قدم وحدت قدرة اراده دي او داسي نور او بحث كيږي له

احوالو دجسم او عرض څخه چي حدوث افتقار ترکيب اجزاء دي او داتول بحث ده له احوالو دمعلوم لپاره داثبات دعقائدو دينيه و

## غرض دعلم کلام

معرفة ذات الله وصفاته وافعاله يعني دالله تعالی دذات او صفاتو او افعالو پيژندل دعلم کلام غرض ده

## دعلماء اقوال په باره کي دعلم کلام

امام نووي وايي په شرح کي دمسلم چي علماء ويلي دي چي بدعة پنځه قسمه ده واجب مندوب حرام مکروه اومباح له واجب بدعت څخه دمتکلمينو علماء دلائل دي پرملحدينو او مبتدعينو باندي. ابن حجر هيتمی وايي په فتاوی حديثيه کي چي هغه څه چي زموږ علماء ورباندي تصريح کري ده هغه دادي چی پر هرچا واجب دي په وجوب عيني سره چي وپيژني صحيح عقيده له فاسدي څخه خو داشرط نده چي دده علم پر قانون دعلم کلام وي ځکه مدار اصلي صحيح عقيده درلودل دي که څه هم په تقليد سره او زده کول ددلائلو کلاميه و او دهغو درول پرمخالفينو باندي فرض کفايي ده. شمس الدين رملي وايي چي ننوتل په عَلم کلام کي په داسي طريقه چي ممکن مي درول د دلائلو پرعقائدو دينيه باندي اولېري کول دشبهو فرض کفايي ده.امام غزالي وايي چي بوشی هم له علم کلام څخه په عصر اول کي نه وو او دوبېدل په دې کبني له بدعت څخه وو لېکن داحکم اوس تغير خوري ځکه هغسی بدعات په خلگوکي پېداسو چي صارف دي له مقتضی دقران اوحديث څخه نوعلم کلام له جملي څخه د واجباتو کفايه و ده. خو له ځينو علماء څخه ددي برخلاف څه منقول دي خوددي اقوالو ترمنځ توفيق داده چي علم کلام

دوه قسمه ده يو مذموم اوبل ممدوح ابن عساكر په خپل هغه كتاب كي چي ده ليكلی ده په دفاع كي له امام اشعري څخه وايي كلام مذموم كلام داهل الاهواء او دهغه خلكو چي مبتدعين دي او هغه كلام چي موافق وي له قران اوحديث سره محمود اوممدوح ده په وخت كي دظهور دفتنو. علامه كوثري وايي چي په عقيده كي داهل السنة هيڅ تغير او تبديل نده راغلی كه مخكني علماء دي او كه ورستني بلكه هغه شی چي نوی ده هغه ددفاع طريقه ده له دي عقيدي څخه

## ابرز دعلماء په علم كلام كي

امام ابوالحسن الاشعري امام ابومنصور الماتريدي ابوالمعالي الجويني ابوحامد محمد الغزالي فخر الدين الرازي ابوبكر الباقلاني ابو اسحاق الاسفراييني ابو بكربن فورک سعد الدين التفازاني ابوعبد الله السنوسي او داسي نورعلماء

## دعلم كلام اهميت

دا معلومه خبر ده چي علم كلام بحث كوي له عقائدو اسلاميه وڅخه له دوو زاويو يو پيژندل دعقائدو اسلاميه و اوبل درول د دلائلو پرعقائدو باندي او داهريو غټ اهميت لري معتبريږي اصل په دين كي

## امام اعظم صاحب اوفقه اكبر

اختلاف ده په دي كښي چي فقه اكبر دامام صاحب كتاب ده اوكه يا ښوصحيح خبره داده چي دا دامام صاحب تاليف ده او دده املاء ده. امام عبد القاهر بغدادي وايي چي اول دمتكلمينو له فقهاء څخه امام اعظم رحمه

الله تعالى ده ځکه دتاليف وکړ دکتاب په رد کي پرقدربه باندي اونامداره نې کړ په فقه اکبرسره. امام الزبيدي په اتحاف السادة المتقين کي وايي چي په تبصرة بغداديه کي دي چي اول دمتکلمينو له اهل السنة څخه امام ابوحنيفة رح ده تاليف نې وکړو دفقه اکبر.علامه کردري رح وايي چي معتزله دا دعوه کوي چي امام صاحب تاليف نلري په علم کلام کي د دوی غرض په دي کښي داده چي نفي کړي فقه اکبر او کتاب العالم والمتعلم له امام صاحب څخه ځکه امام صاحب په دې کښي تصريح کړي ده په عقائدو داهل السنة والجماعة او دوی وايي چي امام صاحب معتزلي وو صحيح خبره داده چي دا دامام صاحب کتاب ده لکه څنګه چي معلوميږي له دې څخه چي ډيرو معتبرو علماء ورباندي شرحي ليکلي دي لکه ملاعلي قاري او داسي نورو علماء

## د امام ابوحنيفه رحمه الله لنډه پېژندنه

داهل السنة والجماعة له څلورو امامانو څخه ديوستر امام ، لوی مجتهد محدث او د اسلامي مشهور تشريعي «حنفي مذهب» دبنسټ کرچی په دُنيا کې تر نيمو زيات مسلمانان په همدې مذهب دي

## نوم نسب اوزيږيدنه

دامام ابوحنيفه رحمه الله اصلي نوم نعمان ، کنيت يې ابوحنيفه د پلار نوم يې ثابت اود نيکه نوم يې زوطي ؤ د هجرت په ۸۰ هـ : ق : الموافق ۶۹۹ م : کال دعراق د کوفې په ښار کې زيږيدلی او په ۱۵۰ هـ : ق : الموافق ۷۶۸ م : کال وفات سوی دی ، امام صاحب رحمه الله يو زوی درلود چی حماد نوميدئ اود پياوړی عالم وو . د امام صاحب د پلار د اصلي وطن په باب دوه قوله مشهو

دي : اول : داچې : د پلار اصلي وطن يې افغانستان دی وروسته يې کوفې ته هجرت کړی دی ، دوهم : قول دا دی چې د امام صاحب اصلي وطن فارس (ايران) دی او وروسته يې کوفې ته هجرت کړی دی مګر ډيرو تاريخ ليکونکو ويلي دي چې د ابوحنيفه پلار اصلاً دافغانستان په کابل کې زيږدلی دی

## د امام صاحب زده کړه

امام ابوحنيفه د ښه استعداد او فکر خاوند ؤ چې په سبق کې په بيړه مخ پر وړاندې روان سو عربي ژبه او ادب يې پوره زده کړل احاديث يې روايت کړل او وروسته له دې يې د کلام علم ترلاسه کړ تردې چې پدې علم کې لوړې مرتبې ته ورسيد او د يې لارو ډلو له سرخيلو سره به يې په عقيدوي مسائلو کې مناظرې او مباحثې کولې چې تل به پکې برېالی راووت. وروسته يې فقهې ته مخه کړه او د حماد بن ابي سليمان په حلقه کې ورګډ شو ان تردې چې ۱۸ کاله يې ورسره تېر کړل. امام صيب به هرکال د حج فريضه ترسره کوله آن تردې چې خينې پوهان وايي چې امام صيب ۵۵ خله د حج فريضه ادا کړي وه د امام صاحب دا سفرونه هغه دې ده ته اړ کړ چې د بيت الله الحرام او نبوي مسجد له فقهاؤ پوهانو سره وګورې او د هغوي له پوهو څخه برخمن شي له هغوي څخه نبوي احاديث ترلاسه کړي فقهي مسائل ترې وپوښتي او د هغوي له درس او تدريس څخه ګټه پورته کړي پدې ډله کې چې هغه له چا سره کتلي او د هغوي له پوهې څخه يې ګټه اخيستې دبعض نومونه دادی ۱ سليمان رحمه الله ۲ عطاء بن ابي رباح رحمه الله ۳ عکرمه مولى ابن عباس رحمه الله۴ نافع مولى بن عمر رحمه الله ۵ سالم بن عبد الله رحمه الله

## دامام اعظم رحمه الله استاذان

محمد بن يوسف الصالحي الشافعي د امام صاحب استاذان آن تر ۴ زرو پوري رسوي خو بعض مشهور استاذان يي ۱ دكوفي دښار امام اوفقيه شيخ حماد بن ابي سليمان رحمه الله چې دحضرت انس بن مالک رضی الله عنه دتولونه نږدی اومعتمد شاګرد دی۲ په مکه مکرمه کې مقيم شيخ عطابن ابي رباح رحمه الله دحضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه خصوصی شاګرد۳ شيخ عکرمه بربري رحمه الله دحضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنه خصوصی شاګرد دی
عقود الجمان ص ۱۴۹

## دامام اعظم رحمه الله شاګردان

محمد بن يوسف الصالحي الشافعي دامام اعظم رحمه الله داته سوه ۸۰۰ شاګردانو نمونه ليکلي دی خو بعض مشهور شاګردان يی ۱ امام ابو يوسف رحمه الله ۲ امام محمد بن حسن الشيباني رحمه الله ۳ امام زفر بن هزيل رحمه الله ۴ امام حماد بن ابي حنيفه رحمه الله ۵ امام عبد الله بن مبارک رحمه الله ۶ امام وکيع بن جراح رحمه الله ۷ امام داؤد بن نصير رحمه الله
عقود الجمان ص۱۹۲

## امام صاحب له تابعينو څخه وو،

هغه پدې معنی چې ده په خپل ژوند کې د پيغمبر صلی الله عليه وسلم له سپيڅلو اصحابو سره کتلي سوي او د هغوي له وينا ؤ څخه يې کته ترلاسه کړي. له هغوي څخه يې مبارك احاديث روايت کړي دی په هغو کښې دبعض صحابه کرامو نومونه دادی لکه انس بن مالك. رضي الله عنه عبدالله بن انيس رضي الله عنه او سهل بن سعد رضي الله عنه عبد الله بن جزء الزبيدی

رضي الله عنه حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه حضرت معقل بن يسار رضي الله عنه حضرت واثله بن الاسقع رضي الله عنه حضرت عائشه بنت عجرد رضي الله عنها او دالس رضى الله عنه سره د امام ابوحنيفه په كتنې باندې دجمهورو اهل علمو اتفاق دى تبييض الصحيفه ص ٢٢ ؟

## د امام ابوحنيفه رحمه الله مقام

دامام اعظم صاحب په اړه علماء كرام ليكي قال علي بن عاصم لو وزن علم أبي حنيفة بعلم أهل زمانه لرجح عليهم وقال ابن المبارك أبو حنيفة أفقه الناس وقال الشافعي : الناس في الفقه عيال على أبي حنيفة وقال الخريبي : ما يقع في أبي حنيفة إلا حاسد أو جاهل قال الذهبي رحمه الله : الإمامة في الفقه ودقائقه مسلمة إلى هذا الإمام وهذا أمر لا شك فيه رضي الله عنه ، ورحمه توفي شهيدا في سنة خمسين ومئة انتهى راجع : سير أعلام النبلاء (6 /390-403) يعني على بن عاصم وايي كه د ابوحنيفه علم دعلم سره د اهل دزماني پرتله شي د ابوحنيفه علم به ور باندې دروند شي : ابن المبارک وايي : ابوحنيفه پوه ترين د خلكو ؤ . امام شافعي وايي : د خلكو پوهه د امام ابوحنيفه د پوهې په نسبت د هغه د عيال مثال لري . الخريبي وايي : څوک چې د ابوحنيفه مخالفت كوي هغه ياكينه او حسد كوي او ياجاهل دي . امام الذهبي رحمه الله وايي دفقه په مسائلو كي وامام صاحب ته پيشواتوب بوداسى امر ده چې شک نسته وربه كښى الله جل جلاله دي دده څخه راضي سي: د الله رحمت دي وي په ده باندې هغه په ١٥٠ هجري سنه كې شهيد وفات شو :

سير أعلام النبلاء (6/ 390-403)

## امام ابوحنیفه رحمه الله تر نورو امامانو مشر وو :

امام ابوحنیفه (رحمه الله) په ۸۰ هجري سنه کې پیدا شوی دی او حضرت امام مالک (رحمه الله) په ۹۵ هجري سنه کې پیدا شوی دی او حضرت امام شافعي (رحمه الله) په ۱۵۰ هجري سنه کې پیدا شوی دی او حضرت امام احمد بن حنبل (رحمه الله) بیا په ۱۲۶ هجري سنه کې پیدا شوی دی

## لیکلي اثار

۱ الفقه الاکبر بروایة حماد بن ابي حنیفة: دا کتاب يې په علم کلام کې لیکلي، پدې کتاب کې د الله تعالی د صفاتو، تقدیر، خبر او شر من الله څخه بحث سوی دی ۲ الوصیة بروایة ابي یوسف .۳ العالم والمتعلم بروایة ابي مقاتل السمرقندی ۴ الفقه الابسط بروایة ابي مطیع البلخی ۵ رسالة الامام ابی حنیفة الی عثمان البتی بروایة ابی یوسف

## دده مبارك مړينه

امام ابو حنیفه رحمه الله دعباسي خلیفه منصور له اړخه د قاضي القضاة د وظیفي په نه منلو سره په زندان کې واچلول شو چې هلته تقریبا د۷۰ کالو په عمر د جمادي الاول په ۱۱مه، په ۱۵۰ هجري کال چې د ۷۶۸ میلادی کال دجون دمیاشتې له ۱۴ سره سمون خوري لدې فاني نړۍ سترګي پټې کړی .
إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُون

## دلازیاتو معلومات لپاره لاندي کتابونه مطالعه کړی

الخیرات الحسان في مناقب الامام الاعظم ابوالحنیفة النعمان: د حجاز د مفتي علامه ابن حجرالهیتمی تالیف: چې په ۹۷۳ هـ کې وفات دی: تبییض الصحیفه

فى مناقب ابي حنيفه: جى د مشهور عالم حافظ جلال الدين السيوطي تاليف دى جى په ٩١١ هـ كې وفات دى: مناقب الامام ابو حنيفه دابوالمويدالموفق المكي تاليف جې په ٥١٨ هـ كې وفات دى مناقب ابي حنيفه: د ابن البزازالحنفي الكردري تأليف جې په ٨٢٧ هـ كې وفات دى: الدرالمنظم في مناقب الامام الاعظم: د نوح افندي تأليف جې په ١٠٧٠ هـ كې وفات دى عقود الجمان في مناقب ابي حنيفة النعمان: دمحمد بن يوسف الصالحي الشافعي تأليف دى جى په ٩٤٢ هـ وفات دى

هٰذَا وَسُبْحَانَك اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِك. أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ. أَسْتَغْفِرُك وَأَتُوبُ إِلَيْك. أَيُّهَا الْإِخْوَةالْمُكَرَّمُون لاتَنْسَوْنَا مِن صَالِحِ الدُّعَاءِ

[ المرتب اخوكم حكيم الله حماد ]

## بسم الله الرحمن الرحيم

## أصل التّوحِيد وَمَا يَصح الِاعْتِقَاد عَلَيْهِ يجب ان يَقُول آمَنت بِالله وَمَلَائِكَته ..

داكتاب بنياد دتوحيدده اودهغه چي صحيح ده عقيده درلودل هغه باندي واجب ده دا چي ووايي ما ايمان راوړی پر الله جل جلا له باندي اوپر ملائكو دده

### تشريح

(أصل التّوحِيد) په كلام كي دامام اعظم رحمه الله تعالى حذف دمبتدا سوي ده اصل عبارت دامي ده هذا اصل التوحيداو يا حذف دخبر سوی ده اصل التوحيد ومايصح هذا. په لفظ دهذا كي اشاره ده وهغه حاضر ته په ذهن كي دده مطلب داچي داكتاب ده په بيان كي دحقيقت دتوحيد اودهغه چي صحيح ده عقيده درلودل هغه باندي

### دتوحيد لغوي اواصطلاحي معنى

توحيد په لغت كي حكم كول دي پر يوشي په دي سره چي دا يوده اويا علم درلودل په يو والي دهغه اوپه شريعت كي عقيده درلودل دي دعدم شريک له الله جل جلا له سره په الوهيت اوخواصو دالوهيت كي مراد له الوهيت څخه وجوب دوجود د الله تعالى ده او مراد له خواصو د الوهيت هغه شيان دي چي تفريع كيږي پرهغه باندي لكه داچي الله تعالى خالق ده دټولو موجوداتو او مدبر دعالم اومستحق دعبادت ده

مراد له دي چي الله تعالى واحد ده نفى دانقسام په ذات كي د الله او نفى دتشبيه او تشريک په ذات اوصفاتو كي د الله جل جلا له

### دامام صاحب مناظره

ملاعلي قاري رحمه الله تعالى په خپل كتاب منح الروض الازهر شرح الفقه

الاکبر کي دامام اعظم رحمه الله تعالی مناظره په اثبات کي دتوحید رانقل کړي ده یوي ډلي د متکلمینو غوښتل چي دامام اعظم رحمه الله سره مناظره او مباحثه وکړي په اثبات کي دتوحید دربوبیت نو امام اعظم رحمه الله دوی ته وویل چي مخکې تردې چي شروع وکړو په بحث تاسو ماته ددې خبري جواب راکړئ چي یوه کښتی د دجلې په درباب کي په خپله خي اوبیا هلته په خپله ډکیږي له خوراکي شیانو اونورو سامانوڅخه اوبیا خپله راځي او په خپله دربیږي په خپله خالي کیږي اوبیا ځي هغه خای ته چي راغلي وي له هغه ببله دي چي یو مدبر ورسره وي دوی تولو ورته وویل چي دا محاله او ناممکنه ده امام صاحب وویل چي دامحاله ده په یوه کښتي کي نوڅنگه بیادا محاله نه ده په دي لوی عالم کي لاندي اوپورته

(وما يصح الاعتقاد عليه)مراد له صحت څخه عامه معنی ده چي جواز او وجوب دواړو ته شامل مي او اعتقاد دوي معناوي لري یوه معنی ئې داده چي اعتقاد هغه حکم ثابت ده چي نه قبلوي تشکیک چي دبته یقین ویل کیږي او بله معنی ئې هغه حکم ثابت ده چي تشکیک قبلوي چي دبته تقلید ویل کیږي مراد دلته ځني عامه معنی ده او خینو علماو ویلي چي اعتقاد دلته عام ده شاملیږي گمان ته هم خکه هغه گمان چي غالب وي او دگمان کونکي په زړکي نه راځي احتمال دنقیض دگمان هم معتبر ده په ایمان کي خکه ایمان دډیرو عوامو همدامي ده

(يجب ان يقول) يعني فرض ده پر هر معتقد چي مکلف وي ځکه وجوب په حق کي دکوچني اولیولي نسته که څه هم ایمان دکوچني معتبر ده که ایمان راوړي چي ووایي په ژبه سره په دامي حال کي چي ژبه ئې موافقه وي له زړه سره آمنت بالله الخ له همدي وجه الله تعالی ویلي دي په حق کي دمنافقانو (وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَقُولُ آمَنَّا بِاللَّهِ وَبِالْيَوْمِ الْآخِرِ وَمَا هُمْ بِمُؤْمِنِينَ(٨)البقرة _

يعني څيني له خلکو هغه څوک دي چې وايي موږ ايمان راوړی ده پر الله تعالی اوپر ورځ دقيامت او حال دا چې دوی مؤمنان ندي

## اختلاف په اشتراط کې دلفظ دشهادت

په دې قول کې دامام اعظم رحمه الله تعالى يجب ان يقول اشاره ده وعدم اشتراط ته د لفظ دشهادت څکه که شرط وای نو بيا به ئې ويلي وای يجب ان يشهد او په نزد د شوافعو شرط ده لفظ دشهادت دوي دليل نيسي په دې قول دنبي صلى الله عليه وسلم (أمرت أن أقاتل الناس حتى يشهدوا أن لا إله إلا الله وأن محمدا رسول الله)يعني ماته امر سوی دده چې زه جنګ وکړم له خلکوسره ترڅو شاهدي ورکړي پردې باندي چې دالله بغير بل لائق دعبادت نسته اومحمد دالله تعالى رسول ده.څکه دي حديث کې لفظ ديشهد راغلي لکن موږ وايو چې په بعضې رواياتوکي لفظ ديشهد نسته بلکه داسي الفاظ دي ( أُمِرْتُ أن أُقاتلَ الناس حتى يقولوا لا إله إلا الله)

## اقرار رکن ده په ايمان کې اوکه يا

همداسي اشاره ده په لفظ کې د أن يَقول ودبته چې اقرار لره اعتبار سته په ايمان کې سره له اختلافه په دې کې. په دې مسئله کې دوه قوله دي يو دا چې اقرار جزء او رکن دايمان ده لکن سا قطيږي په خينو اوقاتوکې دوهم دا چې اقرار شرط ده لپاره داجراء داحکامو دايمان داقول دمحققينو علماء ده وهو المروي عن ابي حنيفة واليه ذهب الماتريدي وهو الاصح عند الاشعري تائيد کوي ددې داقول د الله تعالى(أُولَئِكَ كَتَبَ فِي قُلُوبِهِمُ الْإِيمَانَ)المجادلة يعني داهغه کسان دي چې الله تعالى ليکلى په زړوکې ددوی ايمان. تائيد ئې څکه کوي چې ايمان منسوب سوی په دې آيت کې وزړو ته

امام بزدوي ويلي دي که څوک تصديق وکړي په زړه سره او پرېږدي بيان په ژبه سره بيله عذره دامؤمن ندی وهذامذهب المحققين من الفقهاء(الروض الازهر)

## دايمان لغوي اوشرعي معنى

(آمنت بِاللهِ)ايمان په لغت کي کرخول ديو شي خاوند دامن بيا اهل لغتو خاص کړي په تصديق پوري خکه په هغه کي کرخي صاحب دقول خاوند دامن له تکذيبه لکن اهل لغت ئې مستعملوي متعدي په حرف سره خکه دوي ئي متضمن کرخوي معنى داقرار لره نو بياتعدى کوي په باء سره لکه په دي قول کي د الله تعالى(آمَنَ الرَّسُولُ بِمَا أُنزِلَ إِلَيْهِ )البقرة_ يعني اقرار کړي پيغمبر په هغه سره چي نازل سوى ده دته او يامعنى داعتراف اوقبول لره نو بيا تعدى کوي په لام سره لکه په دي آيت کي (وَمَا أَنتَ بِمُؤْمِنٍ لَنَا وَلَوْ كُنَّا صَادِقِينَ (١٧) يوسف_ يعني ته نه ئي قبلونکى اوباور کونکي موږ لره که څه هم موږ رښتيني يو بيا په شريعت کي خاص سو په يو خاص تصديق پوري چي هغه تصديق دنبي عليه السلام ده په تولو هغو احکامو کي چي ده راتک کړي په هغوسره له جانبه د الله تعالى

معنا ددي جملي داده چي زه باور اويقين لرم په زړه سره او اقرار کوم په ژبه سره چي الله جل جلاله موجوددي او واحد ذات ده چي نه شريک په ذات کي لري اونه په صفاتوکي

(وَمَلَائِكَتِه) يعني واجب ده دا چي ووايي ما ايمان راوړي پر ملائکو د الله تعالى باندي، دا لفظ جمع دملأك ده په اصل کي مألك وو بيا قلب کي سوى ده له الوکة څخه اخستل سوى ده الوکة په معنى درسالة ده تاء لوجهي دتانيث دجمعي ده دوي په همدي نامه نامداره سوي خکه دوي رسولان دي له جانبه دالله تعالى وتبليغانو ته دالله تعالى

## ملائکه څوک دي

ملائکي دالله جل جلاله پوخاص معززبندګان دي چي هيڅکله دالله جل جلا له نافرماني نه کوي اجسام د دوي نوراني دي قدرت لري پر ځان جوړلو په

مختلفو شکلو باندي دوه قسمه دي بعضي ئې تول وخت مستغرقي وي په معرفت اوتنزيه کي دالله جل جلاله دوی ته ملائکه مقربون ويل کيږي او بعضي ئې تدبير وهي دکار له اسمان وځمکي ته پرکوم طرز چي فيصله سوي دالله تعالی خاوندالي دي د دوو دوو وزرو او درو درو اوڅلورو څلورو پاکي دي له صفت ځځه دذکوريه او انوثية په جواهر الاصول کي ذکر سوي دي چي ملائکو لره دجنت په نعمتو کي کومه حصه نسته او نه هم له ليدلو دالله تعالی

وَكتبه ورُسُله والبعث بعد المَوت وَالقَدر خَيره وشره من الله تَعَالَى............

اوپر کتابودده اوپررسولانو دده اوپرژوند ورسته تر مرګ اوپرتقدير(اندازه) د خير اوشرچي دا دالله جل جلاله له لوري دي

## تشريح

(وَكتبه)واجب ده دا چي ووايي ما ايمان راوړی پر تولو هغو کتابو چي نازل سوي دي له جانبه د الله تعالى پر رسولانو دده لکه توراة انجيل زبور فرقان اوداسي نور بيله تعينه دعدده

مطلب له ايمان څخه پر کتابو داده چي تصديق او باور وکړي پر وجود د دوی اوپر دې باندي چي دا دالله جل جلاله کلام ده نازل سوی ده پر رسولا نو دده

## عدد دهغو کتابو چي نازل سوي دي

تول هغه کتابونه چي نازل سوي دي پر رسولانو يوسل اوڅلوردي (١٠٤) له هغو څخه لس (١٠) صحيفي پر آدم عليه السلام نازلي سوي دي پنځوس(٥٠) پرشيث عليه السلام ديرش (٣٠) پرادريس عليه السلام لس (١٠) پر ابراهيم عليه السلام او توراة پر موسي عليه السلام باندي او انجيل پر عيسى عليه السلام او زبور پر داود عليه السلام او قران پر محمد عليه السلام باندي

(وَرُسُله)واجب ده دا چي ووايي ما ايمان راوړي پر رسولانو د الله تعالى باندي بيله تعينه دعدد او دشمار دهغو

## درسول تعريف

رسول هغه انسان ده چي الله جل جلاله مبعوث کړی وي وخلقوته لپاره د تبليغ داحکامو کله کله ده لره شريعت وي ناسخ شريعت دهغو انبياء لره چي مخکي ترده وي او کله کله مثبت او مقرر وي دهغه شريعت چي مخکي تر ده وي کله کتاب ورسره وي اوکله نه وي داتول پرقول دهغه چا چي رسول او

نبي په يوه معنى بولي لكه چي معلوميږي له قول دامام اعظم رحمه الله تعالى اوپر قول دمغه چا چي د رسول او نبي تر مينځ فرق كوي رسول اخص ده تر نبي ځكه رسول هغه ده چي دلره شريعت او كتاب وي نبي عام ده كه وي اوكه نه وي لكه چي معلوميږي له حديثه دابي ذر رضي الله تعالى عنه چي دمبارك پوښتنه وكړه له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه (كم الأنبياء فقال مائة ألف وأربعة وعشرون ألفا فقال كم المرسلون منهم قال ثلاث مائة وخمسة عشر جما غفيرا)_يعني انبياء عليهم السلام څو دي نو نبي عليه السلام وفرمايل يولک څلورويښت زره نو ابوذر ووېل رسولان څو دي له دوى څخه نبي عليه السلام ووېل درې سوه پنځلس غټه ډله

ايمان راوړل واجب ده پر هر نبي كتاب پر نازل سوي او كه نه وي پر نازل سوي

راوړل دامام اعظم رحمه الله تعالى ددي كلام پر همدې ترتيب باندي لوجهي دموافقت له دي قوله سره دالله تعالى ده(وَالْمُؤْمِنُونَ كُلٌّ آمَنَ بِاللَّهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ)البقرة

(والبعث بعد الموْت)واجب ده دا چي ووايي ما ايمان راوړي پر ژوند ورسته تر مرګ لكه چي الله جل جلا له ويلي دي خپل كتاب كي (ثُمَّ إِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ تُبْعَثُونَ (١٦) المؤمنون_ يعني بيا به تاسو بېشكه دقيامت په ورځ را پاځول كيږي

## ترمرګ ورسته ژوند

بعثت عبارت ده له دي چي الله تعالى را وپاځوي مړي له قبروڅخه لپاره د حساب اوجزا په داسي طريقه چي الله جل جلاله راجمع كړي اجزاوي اصليه د دوي او راوګرځوي ارواح ودوي ته. اجزاوي اصليه هغه اجزاء دي چي له انسان سره له اوله دعمره بيا تر اخره دعمر پوري پاته كيږي اوبعض علماء

وايي چې اجزاوي اصليه هغه اجزاء دي چې انسان ته په اول کې دفطرت حاصلېږي او دا هغه وخت چې دی دمور په رحم کې وي

څنګه چې الله جل جلاله عاقلان انسانان راژوندي کوي په همدغه ډول ليونيان نر وي اوکه ښځه او کوچنيان اوپېريان او شيطانان او حيوانات ټول راژوندي کوي ځکه وارد سوي دي احاديث په دې کې

په باره کې دهغه ناتمامه کوچني (سقطه) چې اندامونه ئې لا نوي پوره سوي ابن عابدين ويلي په رد المحتارکې هغه چې تقاضا ئې کوي مذهب داصحابو زموږ هغه داده چې که دکوچني دبعضي اندامو خلقت ښکاره سوی وو بيا به ئي حشر کيږي او که نه ووبيابه ئي حشر هم نه کيږي وجه ئي داده چې نامداره کول دده په نامه سره تقاضا کوي ددې ځکه فائده نسته په نامداره کولو کې دده بغير له دې چې نعره به کول کيږي ودته په محشر کې په نامه دده

(وَالْقدر خَيره وشره من الله تَعَالَى)يعني واجب ده چې ايمان راوړي پر دې چې قضاء اوتقدير دټولو کارو که خير وي اوکه شر په تقديردالله تعالى دي حتى که يو غوماشي الوزي اويا يو مږيتون حرکت کوي دا په تقدير دالله جل جلاله اوپه تعلق دارادې دده دي همدامي کفر دکافر او ايمان دمؤمن او اطاعت دصالح اوګناه دګناه کار په تقدير دالله تعالى دليل ددې چې خير او شر ټول له جانبه دالله تعالى دي داقول دالله تعالى ده(وَإِنْ تُصِبْهُمْ حَسَنَةٌ يَقُولُوا هَذِهِ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ وَإِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَقُولُوا هَذِهِ مِنْ عِنْدِكَ قُلْ كُلٌّ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ فَمَالِ هَؤُلَاءِ الْقَوْمِ لَايَكَادُونَ يَفْقَهُونَ حَدِيثًا(٧٨)النساء_يعني که ورسيږي دوی ته کومه خوشحالي نو وايي دوی دا دالله تعالى له جانبه ده اوکه ورسيږي دوی ته سختي نو وايي دوی دا ستا له طرفه ده اې نبي ووايه دوی ته چې ټول دالله له جانبه دي نوڅه سوي دي په دې قوم چې نژدې نده چې پوه سي په څه خبره

## دامام اعظم رحمه الله تعالی رد پرمعتزله وباندي

په دي قول کي دامام اعظم رحمه الله تعالی رد ده پر معتزله وو باندي ځکه معتزله وايي چي خير له جانبه دالله تعالی ده اوشر لکه کفر او ګناوي له جانبه دالله تعالی ندي دوي وايي چي مراد دالله تعالی له کافره او ګناه ګار څخه ايمان او اطاعت ده لکن دوي واچول خپل ځانونه په سبب دبدي ارادي ددوي په کفر اوګناه کښي او دوي ګمان کوي چي اراده دشر شرده او شر لائق نه ده له الله جل جلاله سره لکن همدغه معتزله په سخت غفلت کښي دي له دي خبري چي تر دې لوی شر به چيري وي چي غلبه وکري اراده دکافر چي ذليل اوناقص مخلوق ده پر اراده دالله تعالی باندي او دا لازميږي ددوی له قوله څخه

## دامام صاحب دعدول وجه له ايمان اجمالي څخه.

ملا علي قاري رحمه الله تعالی وايي ښايي چي دامام اعظم رحمه الله تعالی دعدول وجه له ايمان اجمالي څخه چي کلمې دشهادت وربندي مشتملي دي داوي چي ده تابعداري کري وي دنبي عليه السلام ځکه هغه جواب ورکړو وپوښتني دجبرائيل عليه السلام چي په باره کي دايمان ئې کري وه له نبي عليه السلام څخه په دي قول سره البته دونه فرق ئې سته چي امام اعظم رحمه الله تعالی تعبير کرې ده له و اليوم الاخر څخه په دي قول سره والبعث بعد الموت

وَالحساب وَالْمِيزَان وَالجنّة وَالنّار حَقّ كُله وَاللهُ تَعَالَى وَاحد لَامن طَرِيق الْعَدَد وَلَكِن من طَرِيق انه لَاشريك لَهُ قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ اللهُ الصَّمَدُ لم يلد وَلم يُولد وَلم يكن لَهُ كفوا أحد

اوحساب او تَلل داعمالو او جنت او دوزخ حق دي تول او الله جل جلاله يو دي خو نه دعدد له لاري بلکه په دي اعتبار چي شریک نسته ده لره ووایه اي محمده چي الله جل جلاله یودي بي پروا دی نه ني ځوک زیږ ولی دی او نه دچا څخه زیږدلی دی اونسته دلره سیال هیڅوک

## تشریح

(وَالحساب)یعني حساب دهغواعمالو چي انسان ني دنیاکي کسب کري وي همداسي سوال دالله تعالی له بنده څخه ددې اعمالو حق ده دلیل ني همدا قول د الله جل جلاله ده(وَكَفَى بِنَا حَاسِبِينَ(٤٧)الانبیاء_یعني کافي یوو موږد حساب کولولپاره. اوهمداسي الله تعالی ویلي دي(فَوَرَبِّكَ لَنَسْأَلَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ (٩٢)عَمَّا كَانُوايَعْمَلُونَ (٩٣) الحجر_ یعني نو قسم ده په رب ستا چي خامخا به موږ سوال کوو له دوی تولو څخه دهغه کارو چي دوی به کول

(وَالْمِيزَان)یعني تَلل دښو اوبدو اعمالو حق اوثابت ده په ورځ دقیامت لکه چي الله تعالی ویلي دي( وَنَضَعُ الْمَوَازِينَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيَامَةِ) الانبیاء_یعني موږ به کښیږدو تلې دانصاف په ورځ دقیامت

اوصاحب دمیزان به حضرت جبرائیل علیه السلام وي

## تول به څنګه کیږي

به طریقه اوکیفیت کي دتللودرې قوله دي اول قول داده چي صحیفي د اعمالوبه تلل کیږي نو ښودل کیږي به صحیفي د نیکیو په یوه تله کي اودبدیو دا په بله تله کي اوږدي بالدي جمهورعلماء دي .

دوهم قول دا ده چې الله جل جلاله به اجسام ورکړي ودي اعمالو ته وبه ګرزوي نیکې اجسام نورانیه اوبدي اجسام ظلمانیه اوبیا به ئې تول وکړل مي ددوی

دریم قول داده چې نفس انسان به تلل کیږي.

اوبعضي علماء ویلي دي چې میزان عبارت له هغه شي څخه چې په هغه سره پیژندل کیږي مقدار او اندازه دشیانو عقل قاصر ده له ادراکه دکیفیته ددي

## دتول حکمت

حکمت په تول کي داعمالو سره له دي چې الله تعالی ته معلوم دي هرڅه داده چې ښکاره کړي خپل عدل وخلقوته په عذاب ورکولوکي.همداسي ښکاره کول دفضل خپل په عفوه کي وبند ګانوته اوپه زیادت کي دثواب ددوی

(وَالْجَنَّةَوَالنَّار)یعني جنت اودوزخ حق اوثابت دي پیداسوی دي موجود دي في الحال نه فناء کیږي بلکه همیشه به وي او همدامي به عذاب او ثواب په جهنم او جنت کښي همیشه وي دلالت کوي پر دې خبره باندي داقول دالله تعالی ( وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ أُعِدَّتْ لِلْمُتَّقِينَ(۱۳۳)آل عمران_یعني (یو له بله تلوار وکړئ)هغه جنت ته چې پلن والی ئې داسمانو اومځکي په اندازه ده تیارکړل سوي ده لپاره دمتقیانو فَاتَّقُواالنَّارَ الَّتِي وَقُودُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُأُعِدَّتْ لِلْكَافِرِينَ(۲٤)البقرة_ یعني نو وبېرېږئ له هغه اور څخه چې خاشاک دهغه انسانان اودبري دي

په دې ایاتوکي الله جل جلاله دجنت اوجهنم دواړوپه حق کي صیغې د ماضي ویلي دي اودا دلالت کوي پردې باندي چې موجوددی في الحال

## دوحدت دوه قسمونه

(وَاللهُ تَعَالَى وَاحِدلاَمن طَرِيق الْعدَد)کله کله ویل کیږي واحداوراده کیږي په دي سره نهمي ددوو اودا هغه ده چې شروع کیږي عددله ده څخه نوواحد له

طريقي دعدد هغه معدود ده چي واقع كيږي په اوله مرتبه كي دعدد او دا وحدت مختص نه ده په الله جل جلاله پوري بلكه هرشي واحد كيداسي له طريقي دعدده

(وَلَكِن من طَرِيق انه لَاشريك لَهُ)كله كله ويل كيږي واحداو اراده كيږي په دي سره داچي نسته دَلَره شريک او مثل په ذات اوصفاتوكي او دا وحدت مختص ده په الله تعالى پوري مطلب دا چي الله جل جلاله واحد ده په دي معنى چي شريک نسته له ده سره په ذات اوصفاتوكي او نه مثل سته دلره

(قُلْ هُوَاللَّهُ أَحَدٌ)ووايه اي محمده چي الله تعالى متوحد ده په ذات كي اومتفرد ده په خپلو صفاتو كي

(اللَّهُ الصَّمَدُ)الله جل جلاله مستغني اوبي پروا ده له هر چا او محتاج دي ود ته هرڅوک په دي قول كي ردده پرفلاسفه وو باندي څكه دوى وايي چي له يوه څخه يو صادريږي نود الله تعالى څخه اول وار عقل اول صادر سو بيا نعوذ بالله الله جل جلاله معطل سو اودا عقل صاحب د دوو جهتو وو يو امكان ذاتي اوبل وجوب بالغير نو په يوه جهت له دڅخه فلک پيداسو او په بل جهت عقل ثاني او همدغه مي ترلسمه عقله پوري

(لم يلد)يعني نه ئې څوک زيږولى ده څكه څوک مجانس نده له دسره توالد مجانست غواړي په دي قول كي رردده پريهودو اونصاري وو باندي څكه يهود عزيرعليه السلام نعوذبالله دالله تعالى زوى بولي اونصاري عيسى عليه السلام او همدامي پر مشركانو باندي رردده څكه دوي ملائكي لوني بولي دالله تعالى

(وَلم يُولد)اونه دى له چاڅخه زيږدلى ده څكه ولدمسبوق بالعدم وي او الله جل جلا له قديم ده مطلب داده چي الله تعالى نه محل دحوادثو ده اونه هم څپله حادث ده

(ولَم يكن لَهُ كفوا أحد)نسته دلره سيال هيڅوک کفو په لغت کي مماثل ته وبل کيږي په کمال کي دلته ځني مراد مطلقي مماثل ده په ذات اويا په صفاتوکي

دلته دوي خبري دي يو توحيد دالله جل جلاله په معنا دنفی دکثرت اوډيروالي له ذات څخه دالله تعالی په اعتبار د اجزاوو ددي خبري دليل داده چي که الله جل جلاله مرکب سي نو احتياج به پيداکړي وجز ته اوجز دشي غير وي له هغه شي څخه او احتياج وغير ته علامه دامکان ده او الله تعالی واجب الوجود ده

دوهم توحيد دالله جل جلاله په معنا دنفي دشرکت په ذات اوالوهيت کي دليل ددې خبري برهان التمانع ده چي اشاره سوي ده ودې ته په دي قول کي دالله تعالی(لَوْكَانَ فِيهِمَا آلِهَةٌ إِلَّا اللَّهُ لَفَسَدَتَا)الانبياء_يعني که وای په اسمانو اومځکه کي خدايان پرته له الله جل جلاله څخه نو دمځکي اواسمانو دواړو نظام به خراب سوی وای

## دبرهان التمانع بيان

دبرهان التمانع بيان داده چي که چيري خدايان متعدد سي نوممکن ده د دوی تر منځ تخالف او تمانع په داسي طريقه چي ممکنه ده چي يو اراده وکړي دحرکت دزيد اوبل دسکون دده خکه هريوله دي دووڅخه ممکن ده في نفسه او همداسي تعلق د ارادي د دوی په حرکت دزيد او سکون دده پوري نو اوس که موجود سي دا دواړه نو لازميږي اجتماع دضدينو او دامحاله ده او که داسي نه کيږي نو بيا خو يوعاجزه سو له خپل مراد څخه او داعلامه دحدوث او امکان ده مطلب دا چي تعدد مستلزم ده امکان لره دتمانع اوهغه مستلزم ده محال لره نو تعدد محاله ده

لَا يشبه شَيْئا من الْأَشْيَاء من خلقه وَلَا يُشبههُ شَيْء من خلقه

نه ده مشابه الله جل جلاله له يوشي سره له اشياو له مخلوقه دده اونه مشابه ده له ده سره يوشي له مخلوقه دده

## تشريح

(لَايشبه شَيْئا من الْأَشْيَاء من خلقه) مشابهت اشتراک ته وېل کېږي په يوصفت کي له صفاتو. الله تعالى اشتراک نه لري له مخلوق سره په يو صفت کي له صفاتواونه مخلوق اشتراک لري له الله تعالى سره داچي ظاهراکوم اشتراک ښکارېږي لکه داچي الله جل جلاله موصوف کېږي په رحمت سره او همداسي انسان داصرف اشتراک لفظي ده حقيقي نده ځکه رحمت په انسان کي عبارت ده له نرموالي دزړه او رحمت دالله تعالى عبارت ده له داسي صفت څخه چي لائق وي له شانه سره دده چي موږ درک نه سو کولای دحقيقت دهغه

وجه دنه مشابهت ئي داده چي اشياء ټول مخلوق دي الله تعالى لره اوحادث دي دارنګه هالک دي په مرتبه کي دذات او الله جل جلاله واجب الوجود اوقديم ذات ده صفات دالله تعالى نه عين ذات دي لکه فلاسفه چي وايي اونه غيرذات دي لکه معتزله چي وايي اونه حادث دي لکه کراميه چي وايي او صفات دمخلوق غيردي له ذواتو د دوي اشاره کوي دېته داقول دالله تعالى (لَيسَ كَمِثلِهِ شَيءٌ)الشورى_يعني نسته په مثل دالله تعالى هيڅ شى .

(وَلَايُشبههُ شَيْء من خلقه) نه په وجود کي ځکه وجود دالله تعالى واجب ده او نه په علم کي اونه په قدرت کي اونه په نورو صفاتوکي ځکه تشابه په صفت کي عبارت ده له دي چي صلاحيت به لري بو له دوي هغه لره چي هغه بل ئي لري اوپه همدي طور تشابه دالله تعالى اومخلوق تر منځ ممکنه نده ملاعلي قاري په خپله شرحه کي ليکلي دي چي دقونوي په شرحه کي دي چي نعيم ابن

حماد ویلي دي که چا الله جل جلاله ته په مخلوق کي له یوشي سره مشابهت وکړ هغه کافرده همداسي که چا دالله جل جلاله له یو دامي صفت څخه انکار وکړ چي الله تعالی خپل خان وراندي موصوفه کړي وو هغه سړي کافر ده

لَمْ يَزَل وَلَايَزَال بأسمائه وَصِفَاته الذاتية والفعلية

همیشه وو الله جل جلاله په تیره زمانه کي او همیشه به وي په را روانه زمانه کي په خپلو نومانو اوصفاتو سره هغه که صفات ذاتیه دي او که فعلیه صفات دي

## تشريح

(لَمْ يَزَل)یعني یوداسي زمانه نه ده تیره سوي چي په هغه زمانه کي دي الله جل جلاله موجود نه وي اوموصوف دي نه وي په خپلو نومانو اوصفاتو سره همدامعنی ده دازلیت اوقدم مقابل د دي حدوث زماني ده چي هغه عبارت ده له دي چي یوشي مسبوق بالعدم وي په دي معناچي یوشی معدوم اونیستي وي په یوه زمانه کي بیا موجود سي اوموصوف وګرزي په وجود سره په بله زمانه کي ورسته ترمخکنی زماني

(وَلَايَزَال)یعني نه به راځي یوه زمانه له را روانو زمانو لیکن الله جل جلاله به موجود وي په هغه زمانه کي اوموصوف به وي په خپلو نومانو اوصفاتوسره همدامعنا ده دابدیت اوبقاء مقابل د دي فناء ده هغه عبارت ده له موصوف کیدوپه عدم سره په یوه زمانه کي ورسته تروجود په مخکني زمانه کي

(بأسمائه وَصِفَاته) باء تعلق نیسي تر منعوت پوري هغه خبر ده لپاره دلم یزل او لایزال پر سبیله دتناز ع مضاف مقدر ده یعني همیشه وو الله جل جلاله په مخکي زمانه کي اوهمدامي په راروانه زمانه کي موصوف اومنعوت په مدلول دخپلو نومانو اوصفاتوسره نوی نده پیداسوی یو نوم له نومانو دالله تعال اونه یوصفت له صفاتو دده

(الذاتية والفعلية)صفات ذاتیه لکه علم حیات کلام داصفات قدیم دي په اتفاق سره داشاعره و اوماتریدیه و. اوصفات فعلیه لکه خلق رزق اودامي

نوردماتريديه و په نبزدالله جل جلاله ټول صفات هغه که ذاتيه دي اوکه فعليه قديم دي اومذهب داشاعره و داده چې صفات ذاتيه دالله جل جلاله قديم دي اوصفات فعليه حادث دي

## درې قوله په فرق کې دصفاتوذاتيه و اوفعليه و

په فرق کې ترمايين دصفاتو دذات اوصفاتو دفعل اختلاف سته معتزله وايي هر صفت چې په هغه کې جريان دنفی او اثبات کيږي هغه له صفاتو فعليه و څخه ده لکه داچې الله جل جلاله پيداکړو فلانکي لره زوی اونه ئې ده پيدا کړي فلانکي لره يا دا چې الله تعالی ورکړي ده فلانکي ته مال اونه ئې ده ورکړی فلانکي ته اوهرصفت چې په هغه کې جريان دنفی او اثبات نه کيږي هغه له صفاتوذاتيه و څخه ده لکه علم اوقدرت خکه داسي نه ويل کيږي چې الله جل جلاله پرفلانکي شي علم لري اوپر فلانکي شی ئې نه لري

داشاعره و په نزد ئې فرق داده هرصفت چې له نفی کولو څخه دده نقيض دده لازميږي هغه له صفاتو دذات څخه ده لکه حيات خکه که حيات نفی کړل سي لازميږي موت اوهمدامي علم خکه له نفی څخه ئې لازميږي جهل اوهرهغه صفت چې له نفی کولو څخه دده نه لازميږي نقيض دده هغه له صفاتو دفعل څخه ده لکه احياء (ژوند ورکول) خکه له نفی کولو دده نه لازميږي اماتة (وژل) لکه په جماداتو کې

په نزددماتريديه و ئې فرق داده هرصفت چې په ضد دهغه سره الله جل جلاله نه موصوفه کيږي هغه له صفاتو څخه دذات ده لکه علم قدرت حيات خکه ضد ددي صفاتو جهل عجز موت دي اوالله جل جلاله نه موصوفه کيږي په دي سره اوهر صفت چې په ضد دهغه سره الله تعالی موصوفه کيږي هغه له صفاتو دفعل څخه ده لکه رحمت غضب او داسي نور

أما الذاتية فالحياة وَالْقُدْرَة وَالعلم وَالْكَلَام والسمع وَالْبَصر والارادة

اوكوم چې ذاتي صفات دي هغه لکه حيات قدرت علم کلام سمع بصر اراده دي

## تشريح

(أما الذاتية)صفات ذاتيه هغه صفات دالله تعالى دي چې موقوفه نه وي ظهور ددوی پروجود دمخلوق

(فالحياة) يعني له صفاتو ذاتيه و څخه دالله جل جلاله حيات ده حيات صفت ذاتي ده پر تولو هغو مذاهبو چې مخکي ذکرسو ځکه په ضد دحيات سره الله جل جلاله نه موصوفه کيږي او لازميږي له نفی کولو څخه دده موت اوجريان دنفي او اثبات نه کيږي په ده کي

دجمهور علماو په نزد حيات هغه صفت ده چې تقاضا کوي او مستلزم کرزي صحت دعلم اوقدرت لره دليل دصفت دحيات داده چې الله جل جلاله عالم ده اوقادر ځکه هغه څوک چې ثابت سي علم دده اوقدرت دده ضرور ثابتيږي حيات دده نو الله جل جلاله ژوندی ده په خپل حيات سره چې دده ازلي او قديم صفت ده الله جل جلاله په خپل کتاب کي ويلي دي (اللَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ)البقرة

(وَالْقُدْرَة)يعني همدامي له صفاتوذاتيه و څخه دالله جل جلاله قدرت ده قدرت صفت ازليه ده چې تاثير کوي په مقدوراتوکي په وخت کي دتعلق ددي صفت تر مقدوراتو پوري مطلب داده چې الله جل جلاله قدرت لري پر اشياو باندي په خپل هغه قدرت سره چې هغه دده ازلي اوقديم صفت ده وايي الله جل جلاله خپل کلام مجيدکي(إِنَّ اللَّهَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ)البقرة

(وَالْعلم)يعني له صفاتوذاتيه و څخه دالله جل جلاله علم ده علم دالله تعالى بو

دامي صفت ده کله چې تعلق ونیسي ترمعلوماتو پورې نو دهغو انکشاف ور باندې کیږي مطلب داده چې علم دالله جل جلاله ذاتي او ازلي صفت ده نو الله تعالی علم لري پرټولو موجوداتوباندې په دامې ډول چې يوشې هم له علم دالله جل جلاله وتلي نه ده هغه که ممکن وي اوکه ممتنع. موجود. معدوم.جوهر.عرض. صورت. معنی. کلي. جزئي. امام طحاوی رحمه الله تعالی وايي چې پر الله جل جلاله باندې دمخلوقاتو تر پیداکیدو له مخه هم يوشې پټ نه وو اوهمداسې الله جل جلاله ته د دوی ترپیدائښت مخکې د دوی داعمال علم وو دلیل پر شمول دعلم دالله جل جلاله داده چې الله تعالی قادر ده پر ټولو ممکناتو باندې اوترجیح و يوه طرف ته دممکن پر بل طرف باندې مثلا و وجود دممکن ته پر عدم دده په اراده سره ورکول کیږي او اراده تابع اومستلز مه کرزې علم لره (وَعِندَهُ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَا إِلَّا هُوَ وَيَعْلَمُ مَا فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ وَمَا تَسْقُطُ مِن وَرَقَةٍ إِلَّا يَعْلَمُهَا وَلَا حَبَّةٍ فِي ظُلُمَاتِ الْأَرْضِ وَلَا رَطْبٍ وَلَا يَابِسٍ إِلَّا فِي كِتَابٍ مُّبِينٍ (٥٩)الانعام_ يعني دالله تعالی سره دغيبو چابياني دي علم نه لري پرغيبو مګر الله تعالی عالم ده په هغوسره او عالم ده پر هغه شيانو چې په وچه کې دي اوپر هغو چې په درياب کې دي اونه رالويږي يوه پاڼه له درختې مګر الله جل جلاله عالم ده په هغې سره او نه يوه دانه په تارکيو کې دمځکې او نه لوند شی او نه وچ شی مګر دا ټول ليکل سوي دي په يو کتاب ځرګند اوښکاره کې(چې لوح محفوظ ده) .

(وَالْكَلَامِ)يعني له صفاتو ذاتيه وڅخه دالله جل جلاله يوصفت کلام ده څکه الله جل جلاله متکلم خبرې کونکې ده په هغه کلام سره چې هغه دده ازلي صفت ده تعبير کيږي له دغه صفت څخه په هغه نظم سره چې مسمي ده په قران سره چې مرکب ده له حروفو څخه څکه هر هغه څوک چې امر کوي اويا نهي اويا اخبار کوي دبو خبرې نو دي پيداکوي له ځهل ځان څخه يوه معنی

بيا دلالت كوي پرهغي باندي په عبارت سره اوياپه اشاره سره اويا په كتابت سره اودغه معنى غير ده له علم څخه خكه كله كله انسان اخباركوي له هغه شي څخه چې دي ورباندي علم نه لري بلكه علم لري پرخلاف دهغه اوهمداسي غير ده له ارادي څخه خكه كله كله انسان امر كوي په هغه شي سره چې دده مراد نه وي مثلا يو سړي امر كوي خپل غلام ته ديوشي قصد ني داوي چې ښكاره كړي وخلقو ته عصيان اونافرماني دخپل غلام دائي قصد نه وي چې غلام دغه كار وكړي همدېته كلام نفسي ويل كيږي لكه چې ويلي دي الله جل جلاله په خپل كلام پاک كي(وَيَقُولُونَ فِي أَنفُسِهِمْ لَوْلَا يُعَذِّبُنَا اللَّهُ بِمَا نَقُولُ) المجادلة يعني او وايي دوی په خپلو نفسوكي چې ولې الله تعالى موږ ته عذاب نه راكوي په هغه خبرو چې موږ ئي وايو

دليل پرثبوت دكلام اجماع ده خكه ټولو امامانو ددي امت اتفاق كړي پر دي باندي چې الله جل جلاله متكلم ده دارنكه نقل سوي له انبياو عليهم الصلوة والسلام څخه په نقل متواتر سره چې الله جل جلاله به دوي ته وحى كولې لپاره دبيانولو داحكامو

ليكن كلام دالله جل جلاله له جنسه دحروفو او اصواتو څخه نه ده الله جل جلاله متكلم ده آمر ده ناهي ده مخبر ده په دي معنى چې كلام دالله تعالى بوصفت ده ډيروالي ئي و امر نهي اخبار ته لوجهي داختلاف دتعلقاتو ده البته دغه كلام لفظي حادث چې له اوازونو اوحروفو څخه مركب ده اوهر يو له دغو اوازو اوحروفو څخه قائم ده په خپل محل پوري په دي اعتبار قران او كلام الله ورته ويل كيږي چې عبارت ده له كلام نفسي دالله تعالى

دمعتزله و مذهب داده چې الله جل جلاله متكلم ده په داسي كلام چې هغه په بل ځايوري قائم او ولاړ ده دالله جل جلاله صفت نده خكه دوي وايي چې كلام دالله تعالى له جنس څخه دحرف اوصوت ده ليكن دغه صوت اوحرف

الله تعالى په بل چاکې پيداکړي دي لکه لوح محفوظ اوجبرائيل عليه السلام مطلب داچې معتزله الله تعالى متكلم بولي خوپه دي معني چې كلام ئې پيدا کړي په بل چاكې.بعض حنابله وايي چې كلام دالله تعالى اصوات اوحروف دي خوقائم دي په خپله او داقديم دي حتى بعضو خو دونه مبالغه کړي چې وايي هغه پوستكي اوكاغذ لا قديم دي

(والسمع وَالْبَصَر) يعني اورېدل اولېدل له صفاتو ذاتيه و څخه دالله تعالى دي څكه الله تعالى اورېدونكى ده داصواتو اوكلماتو اوحروفو په خپل قديم او ذاتي صفت سره چې هغه سمع يعني اورېدل دي هيڅ يو مسموع شي دالله تعالى داورېدلو څخه پټ نده دارنګه الله جل جلاله لېدونكى ده داشكالو او رنګونو په خپل قديم اوذاتي صفت سره چې هغه بصر يعني لېدل دي خو له حدوثه دمسموعاتو اومبصراتو حدوث ددې صفتو نه لازمېږي لكه دمعلوماتو او مقدوراتو له حدوثه چې حدوث دعلم اوقدرت نه لازمېږي الله جل جلاله خپل كلام پاک کې وايي(وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ (١١)الشورى_ يعني الله تعالى اورېدونكى او لېدونكي ده

## دابراهيم عليه السلام استدلال

حضرت ابراهيم عليه الصلوة والسلام چې كله اراده وكړه ددې چې ښكاره کړي وخپل پلار ته بطلان دبتانو نو دليل ئې ونيوى په صفت دسمع او بصر سره (يَاأَبَتِ لِمَ تَعْبُدُمَا لَا يَسْمَعُ وَلَا يُبْصِرُ)مريم_يعني اي پلاره ته ولې دهغه شي عبادت كوې چې نه څه اورې او نه څه وينې)نو معلومه سوه چې عدم سمعه او بصر نقص ده او الله جل جلاله منزه ده له ټولو نقائصو څخه .

له كلام څخه دامام رحمه الله معلومېږي چې سمع اوبصر مغائر صفات دي له علم څخه څكه عطف تقاضا كوي دمغايرت همدا دټولو ماتريديه و او اشاعره ومسلک ده

(والارادة)اراده دالله تعالى له صفاتو ذاتيه و څخه ده په نزدداشاعره و او ماتريديه و څکه الله جل جلاله په ضد دارادي چي اضطرار دي نه موصوفه کيږي دارنګه ني له نفى کولو څخه اضطرار لا زميږي چي نقيض د ارادي ده او په نزد دمعتزله و له صفاتو فعليه و څخه ده خکه جريان دنفى او اثبات کي کيږي (يُرِيدُ الله بِكُمُ اليسر وَلاَ يُرِيدُ بِكُمُ العسر) البقرة _يعني الله تعالى اراده لري تاسو لره داسانتيا او اراده نلري تاسولره دسختۍ .

اراده اومشيئت په يوه معنى دي دواړه عبارت دي له هغه صفت څخه دالله جل جلاله چي په هغه سره الله جل جلاله ترجيح ور کوي ويوه طرفته دممکن پر بل طرف باندي مثلا ووجود دزيد ته پرعدم دده اويا ووجود دته په يوه وخت کي نه په بل وخت کي په نه ذکر کولو دمشيئت دامام اعظم رحمه اشاره ده ويو والي ته دارادي اومشيئت دارنګه اشاره ده ورد ته پرهغه چا چي فرق کوي تر مينځ داراد اومشيئت وايي اراده حادث صفت ده او مشيئت قديم

مطلب داده چي الله تعالى مريد ده دټولو هغوشيانو چي موجود سوي دي اويا موجود يږي له دي ورسته نو نسي پيدا کيداي يو شي په دنيااواخرت که لوي وي اوکه کوچني خير اوشر، لږ اوډير، نفعه اوتاوان، زيادت اونقصان، ليکن په اراده اومشيئت دالله تعالى دي

ذکر سوي دي اراده اومشيئت دواړو په قران کي (فَعَّالٌ لِمَا يُرِيدُ (١٦)البروج يعني تر سره کوونکى ده هغه چي اراده ني وکړي(وَمَا تَشَاءُونَ إِلَّا أَنْ يَشَاءَ اللَّهُ رَبُّ الْعَالَمِينَ (٢٩)التکوير_يعني تاسو دسمى لاري اراده نسي کولاى مګر دا چي الله رب العلمين لي اراده وکړي.

وَأماالفعلية فالتخليق والترزيق والإنشاء والإبداع والصنع وَغيرذَلك من صِفَات الفِعْل

اوكوم چې صفات فعليه دي نوتخليق(پيداكول) ترزيق (رزق وركول) انشاء (نوى پيداكول)ابداع(پيداكول بيله سابق مثل څخه)صنع (كاركول) اوداسې نورله صفاتودفعل څخه

## تشريح

(وَأماالفعلية)صفات فعليه هغه صفات دي چې ظهور د دوى موقوف وي پر وجود د مخلوق باندې

## په صفاتو فعليه وكې درې قوله دي

په صفاتو فعليه و كې درې قوله دي يو قول دماتريديه و ده هغه داده چې صفات فعليه ټول راجع دي ويوه صفت ته چې عبارت ده له تكوين څخه تعدد د دوي په اعتبار دتعلق ددي صفت ده څكه تكوين كه تعلق ونيسي تر ژونده پورې بيا ورته احياء ويل كيږي اوكه تعلق ونيسي تر رزق پورې بيا ورته ترزيق ويل كيږي وعلى هذا القياس نو په نبز دماتريديه و صفات ازليه اته (٨) دي حيات علم قدرت كلام سمع بصر اراده او تكوين

دلته يوه شبهه وارديږي پر ماتريديه و باندې له طرفه داشاعره و اومعتزله و بيان ددې شبهې داده چې تكوين كه ازلي صفت سي لكه تاسو چې واياست نو بياخو به لازم سي وجود دمخلوق په ازل كې څكه تكوين بيله مكون څخه دامې مثال لري لكه ضرب بيله مضروب څخه لكه څنگه چې ضرب بيله مضروب ممكن نده دارنگه تكوين بيله مكون(مخلوق) څخه جواب ددې شبهې داده چې تكوين قديم صفت ده متعلق دتكوين چې مكون ده هغه حادث دي لكه علم قديم صفت ده او بعض معلومات(په تفصيلي توگه) حادث دي

دوهم قول داشاعره ده هغه وايي چې صفات فعليه صفات حادثه دي
ځکه صفات فعليه عبارت له تعلقاتو دقدرت مثلا قدرت که تعلق ونيسي تر
ژوند ورکولو نو امانة ورته ويل کيږي اوتعلقات حادث دي
دريم قول دبعض علماو دماوراء النهر ده هغه وايي چې هر يو له صفاتو
فعليه و څخه صفت حقيقي ازلي ده تول راجع کيږي نه و يوه صفت ته چې
تکوين ده مثلا تخليق بيل صفت ده او ترزيق بيل وعلى هذا القياس .

## دملاعلي قاري تحقيق

(فالتخليق والترزيق والإنشاء والإبداع والصنع) ملا علي قاري رحمه الله په خپله
شرحه کي وايي چې متبادر داده چې معنى د تخليق انشاء فعل صنع يوه ده چې
هغه پيدا کول ديوشي ورسته ترهغه چې موجود نه وي يعني را ايستل ديو
شي له نيستي وهستي ته برابره خبر ده پر مثال سابق وي اوکه نه وي ليکن
دى مبارک وايي چې صحيح داده چې دا الفاظو په خپلو معناکانو کي يو بل ته
نژدي دي ځکه ابداع پيداکول ديوشي دي ورسته تر دي چې موجود نه وي او
نه هم دده په مثل يو شي موجودي وي مثلا دادم عليه السلام پيدايښت ته
ابداع ويل کيږي ځکه دده تر پيدايښت دمخه دده په مثل بل انسان موجود
نه وو او له ده څخه د ورسته انسانانو پيدايښت ته ابداع ته ويل کيږي
اوتخليق بيا داسي نه ده ځکه هغه يا عام ده تر ابداع او يا ني مقابل ده او
انشاء بيا ديو شي تر ابتدائي پيدايښت پوري خاص ده يعني ديوشي دتخليق
اولي مرحلي ته انشاء ويل کيږي او فعل عبارت ده له هر هغه عمل څخه چې
متعدي وي که خير وي اوکه شر او صنع هغه عمل ته ويل کيږي چې په هغه
کي مظبوطوالي او دنظام ښه والي وي لکه سي اشاره کوي ودېته داقول الله
تعالى (صُنْعَ اللَّهِ الَّذِي أَتْقَنَ كُلَّ شَيْءٍ) النمل يعني وګورئ صنع دالله تعالى
هغه چې هرشی ني محکم کړی ده .

اوترزيق ديوشي رزق پيداكول او قدرت وركول هغه ته پرنفع اخستلو باندي .
(وَغيرذَلِك من صِفَات الْفِعْل)لكه احياء اماتة افناء انبات تصوير اعزاز اذلال او داسي نور دغه صفات ټول راجع دي وبوه صفت ته چي تكوين ده تعدد ئي دتعلق په اعتبار سره ده ملاعلي قاري رحمه الله وايي تحقيق داده چي تكوين صفت ازليه دالله تعالى ده څكه اتفاق كړي عقل اونقل دواړو پر دي باندي چي الله جل جلاله خالق اومكون دعالم ده او منعه ده اطلاق دمشتق پر يو چا باندي بيله دي چي ودريږي ماخذ داشتقاق په ده پوري نو تكوين ثابت ده والله جل جلاله ته ازلا و ابدا او مكون حادث ده په سبب دحدوث تعلق لكه په علم اوقدرت كي

لم يزل وَلَا يزَال بأسمائه وصفاته لم يحدث لَهُ اسْم وَلَاصفة

هميشه وو اوهميشه به وي په خپلو نومانو سره اوصفاتوسره نوى نه ده پيداسوى دلره كوم نوم او نه صفت

## تشريح

(لم يزل وَلَا يزَال بأسمائه وصفاته)يعني الله جل جلاله سره له خپلو تولو نومانو او صفاتو ازلي ده بدايه نه لري او ابدي ده نهايه نه لري

## داسم اوصفت فرق

فرق داسم او صفت داده چي هغه معنى چي قائمه وي په الله جل جلاله پوري اوثابته وي الله لره هغى ته صفت وايي او هغه لفظ چي دلالت كوي پر دي معنى باندي هغه ته اسم وايي

(لم يحدث لَهُ اسْم وَلَاصفة)يعني نوى نه ده پيداسوى الله جل جلاله لره كوم نوم اويا صفت څكه كه دالله جل جلاله يوصفت له صفاتو نوى پيداسي نو وي به الله جل جلاله مخكي تر پيداكيدو ددي صفت ناقص په سبب د نه درلودلو ددي صفت او دا محاله ده په شان كي دالله تعالى او دليل دنه حدوث داسماوو دالله تعالى داده چي اسماء ماخوذ دي له صفاتو څخه لكه عالم له علم څخه اوقادر له قدرت څخه نو له ثبوت څخه دصفاتو په ازل لا زميږي ثبوت داسماء په ازل كي

ملاعلي قاري رحمه الله تعالى وايي چي دلته يو مشهور سوال وارديږي بيان ني داده چي وارد سوى ده اخبار په كلام ازلي كي دالله تعالى په صيغه دماضي سره لكه په دي قول كي دالله تعالى(إِنَّا أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَى قَوْمِهِ)النوح. په بل ځاي كي الله تعالى ويلي دي(فَعَصَى فِرْعَوْنُ الرَّسُولَ)المزمل. او اخبار په لفظ دماضي سره له هغو شيانو چي هغه تر اوسه موجود سوي نه وي كذب بلل كيږي او كذب محال دي په شان كي دالله جل جلاله

جواب ني داده چي كلام اواخبار دالله تعالى منصف نه گرځي په ماضي اويا
حال او يا استقبال سره په ازل کي ځکه هلته زمانه نه وه بلکه اتصاف ني په
دي شيانو سره په لايزال او ابد کي کيږي دنعلفاتو په اعتبارسره نو ويل
کيدامي چي قائم وو اخبار له ارساله دنوح عليه السلام په الله جل جلاله
پوري په ازل کي او موجود وو تر ابده ليکن دلالت کوي پر دي خبره باندي
مخکي تر ارسال دنوح عليه السلام دا لفظ انا نرسل او تر ارسال ورسته دا
لفظ انا ارسلنا نو تغير په لفظ کي دخبر ده نه په اخبار کي

لم يزل عالما بعلمه والعلم صفة في الأزل وقادرا بقدرته والقدرة صفة في الأزل ومتكلما بكلامه والكلام صفة في الأزل وخالقا بتخليقه والتخليق صفة في الأزل .

---

همیشه ده الله جل جلاله عالم په خپل علم سره اوعلم دده صفت ده په ازل کي اوقادر ده په خپل قدرت سره او قدرت دده صفت ده په ازل کي او متکلم ده په خپل کلام سرد او کلام دده صفت ده په ازل کي اوخالق ده په خپل تخلیق سره او تخلیق دده صفت ده په ازل کي

## تشریح

(لم یزل عالما بعلمه والعلم صفة في الأزل)یعني الله جل جلاله عالم ده پرتولو شیانو باندي یوشي هم دالله تعالی له علمه څخه وتلي نه ده او داعلم دالله جل جلاله ازلي او ابدي صفت ده پاک او منزه ده له دي چي قبول کړي زیادت اونقصان همدارنګه پاک ده دغه صفت له حدوث او امکان څخه

## دامام صاحب ردپرمعتزله و اوفلاسفه وباندی

په دي قول کي دامام اعظم رحمه الله تعالی عالما بعلمه(یعني الله تعالی عالم ده په خپل صفت د علم سره نه په ذات سره) اشاره ده ور دته پر معتزله و باندي خکه دوي انکار کوي له صفاتو څخه دالله تعالی او وايي چي الله جل جلاله عالم ده په خپل ذات سره نه په یوصفت سره چي زائد وي پر ذات باندي اوپه دي قول کي والعلم صفةالخ اشاره ده وردته پرفلاسفه و باندي خکه دوي وايي چي علم دالله تعالی حضوري ده یعني حضورد ممکناتو و الله تعالی ته علم ده دلره بیان د رد لي داده چي علم حضوري خوحادث ده اوعلم دالله تعالی ازلي ده (وقادرابقدرته والقدرة صفة في الأزل)یعني الله جل جلاله قادر ده پرتولو شیانو یو شي هم دالله تعالی له قدرت څخه وتلی نه ده په خپل قدرت سره چي دده ازلي او ابدي صفت ده نو الله جل جلاله منزه اوپاک ده له

عجزه څخه

(ومتكلما بِكَلَامِهِ وَالْكَلَام صفة فِي الْأَزَل)يعني الله جل جلاله متكلم ده په خپل كلام نفسي سره چې دده ازلي اوابدي صفت ده له جنسه دحروفو اواصواتو څخه نه ده

(وخالقابتخليقه والتخليق صفةفِي الْأَزَل)يعني الله تعالى خالق ده دتولو موجوداتو يو شي هم دده له تخليق څخه وتلى نده په خپل تخليق سره چې دده ازلي صفت ده

وفاعلا بِفِعْلِهِ وَالْفِعْل صفة فِي الْأَزَل وَالْفَاعِل هُوَ الله تَعَالَى وَالْفِعْل صفة فِي الْأَزَل وَالْمَفْعُول مَخْلُوق وَفعل الله تَعَالَى غير مَخْلُوق

او الله تعالى فاعل ده په خپل فعل سره اوفعل دده صفت ده په ازل کې اوفاعل يوازې الله تعالى ده او فعل دده ازلي صفت ده اومفعول مخلوق ده اوفعل دالله تعالى غيرمخلوق ده

## تشريح

(وفاعلا بِفِعْلِهِ وَالْفِعْل صفة فِي الْأَزَل)يعني الله تعالى فاعل ده په خپل فعل سره چې تکوين ده او دا دالله تعالى صفت ده په ازل کې يعني تکوين دالله تعالى شيانو لره له هغو صفاتو څخه ده چې هغه ازلي او قائم دي په الله تعالى پوري

(وَالْفَاعِل هُوَ الله تَعَالَى) يعني فاعل خاص اويوازې الله تعالى ده هيڅ شريک نسته له الله تعالى سره په فعل اوصنعه کې دده کله چې اراده وکړي دپيدا کولو ديوشي نو ووايي هغه ته کن(يعني موجود سه)نو موجوديږي هغه شي ضرور مراد له کن څخه دغه لفظ نه ده چې مرکب ده له کاف اونون څخه څکه کلام دالله جل جلاله منزه ده له حروفو او اصواتو څخه بلکه لفظ دکن کنايي ده له ژرحاصلیدو دمقصود دالله تعالى

(وَالْفِعْل صفة فِي الْأَزَل)يعني پيدايښت دالله تعالى دټول عالم او دهرجز ددي عالم په خپلو وختوکي دوجود ددوي موافق له علم او ارادي سره دالله تعالى صفت ازلي ده دالله جل جلاله

## صفات دالله تعالى دري قسمه دي

حاصل داده چې صفات دالله تعالى دري قسمه دي يو قسم صفات حقيقيه محضه دي لکه حيات دوهم قسم صفات حقيقيه ذات اضافت دي لکه علم

قدرت خلق تکوین دریم قسم اضافات محضه دي لکه تعلقات دصفاتو حقیقیه و تر څېلو متعلقاتو پورې مثلا لکه تعلق دقدرت نر مقدور پورې اول دوه قسمه قائم دي په ذات دالله تعالی پورې او قدیم دي او اخیر قسم غیر قائم دي په ذات دالله تعالی پورې او غیر قدیم دي

(وَالْمَفْعُول مَخْلُوق وَفعل الله تَعَالَى غيرمَخْلُوق)یعني مفعول حادث ده اوفعل دالله تعالی غیر حادث ده اوله حدوثه او مخلوقیت څخه دمفعول نه لازمیږي حدوث او مخلوقیت دفعل څکه مراد له فعل خلق صنع ایجاد څخه دغه معاني مصدریه نه دي بلکه مراد څني هغه مبادی ددي معاني و دي اوهغه صفات حقیقیه دي دالله تعالی او قائم دي په ذات دالله جل جلاله پورې

وَصِفَاته فِي الْأَزَل غير محدثة وَلَا مخلوقة وَمن قَالَ إِنَّهَا مخلوقة أَو محدثة أَو وقف أَو شكّ فيهمَا فَهُوَ كَافِر بِاللَّه تَعَالَى .

اوصفات دالله تعالى ثابت وو په ازل كې نه نوى پيداسوي دي او نه هم مخلوق دي او كه چا وويل چي صفات دالله تعالى مخلوق دي يا ني وويل چي نوى پيدا سوي دي يا ني توقف پكښي وكړي يا ني شک پكښي وكړي هغه په الله تعالى باندي كافر ده

تشريح

(وَصِفَاته فِي الْأَزَل غير محدثة وَلَا مخلوقة)يعني صفات دالله تعالى موجود وو په ازل كي نوى ندي پيداسوي او نه هم مخلوق دي څكه ازلية مناقى ده له محدثة اومخلوقية سره او مخكي ثابته سوه چي صفات دالله تعالى ازلي دي وجه دمناقات ني داده چي ازلي هغه شي ده چي وجود تره ني ابتدا نوي اويا هغه چي مسبوق بالعدم نوي او محدثت عبارت ده له را ايستلو ديوشي له نيستي و وجود ته او له دي سره ابتدا د وجود اومسبوقيت بالعدم لازم دي او مخلوقيت مرادف دمحدثة ده .

(وَمن قَالَ إِنَّهَا مخلوقة أَو محدثة أَو وقف أَو شكّ فيها فَهُوَ كَافِر بِاللَّه تَعَالَى)يعني كه چا وويل چي دغه صفات دالله تعالى چي مخكي ذكر سو حيات قدرت علم كلام سمع بصر اراده تخليق ترزيق نوى پيداسوي دي او يائي توقف وكړ پكښي نه ني فيصله وكره په قدم دصفاتو او نه ني په حدوث لوجهي دعناد اويائي شک او تردد وكړ په وجود كي دصفاتو اويا په ازليت كي دهغو مراد له شک څخه دلته عامه معنى ده ظن ته هم شامليږي نو هغه سړى كافر ده په الله تعالى باندي څكه داقول ده په خالي والي دالله تعالى له كمالاتو څخه او اتصاف دده په نقائص ددي صفاتو چي نقائص دي او يا داقول ده په جواز ددي خبري لكه په صورت كي دشک بل له دي وجهي څخه چي ايمان باور

كول دي په زړه سره پر وجود الله تعالی او پر وحدانيت دده او پرټولو صفاتو دالله تعالی نوصفات هم له جملي څخه دمؤمن به دي نو هغه څوک چي ايمان نه لري پر صفاتو دالله جل جلاله هغه جاهل ده په الله تعالی او دهغه په صفاتو دارنګه کافر ده په ټولو انبياو څکه ټولو انبياو اخبار کړي له صفاتو دالله جل جلاله

وَالقرآن كَلَام الله تَعَالَى فِي الْمَصَاحِف مَكْتُوب وَفِي الْقُلُوب مَحْفُوظ وعَلى الألسن مقروء وعَلى النَّبِي عَلَيْهِ الصَّلَاة وَالسَّلَام منزل ولفظنابِالقُرآنِ مَخْلُوق وكتابتناله مخلوقة وقراءتنا لَهُ مخلوقة وَالقُرآن غير مَخْلُوق

اوقران دالله تعالى كلام ده په مصاحفو كي ليكل سوى ده اوپه زړو كي دخلكو محفوظ ده او په ژبو سره ئي تلاوت كيږي اوپر نبي عليه السلام نازل سوى ده اوتلفظ كول زموږ په قران مخلوق ده او ليكل زموږ قران لره مخلوق دي او ويل زموږ قران لره مخلوق دي او قران غير مخلوق ده

## دقران دلفظ تحقيق

(والقرآن كَلَام الله تَعَالَى) قران په اصل كي مصدر ده په معنى دجمع كولو لكه قرأت الشي قرآنا اي جمعته جمعا نومصدر په معنى داسم الفاعل ده يعني جمع كونكي دسورتو اواياتو اوپه معنى دقرائة او ويلو هم راځي لكه قرأت القرآن قرأة وقرآنا نومصدر په معنى داسم المفعول ده ځكه مقروء ده تلاوت ئي كول كيږي

قران مشترک ده لكه ځنګه چي اطلاق كيږي پركلام نفسي دالله تعالى چي قائم ده په ذات دالله تعالى پوري دا رنګه ئي اطلاق كيږي پر دغه مركب له سورتو اواياتو څخه اويا ئي اول اطلاق حقيقي ده دوهم ئي مجازي ده په دي خاطر چي دلالت كوي دغه مركب پر هغه كلام نفسي دالله جل جلاله باندي هركله چي موصوف سي په صفاتو دقديم نو مراد ځني كلام نفسي دالله تعالى ده اوكله چي موصوف سي په صفاتو دحادث بيا ځني مراد دغه مركب له سورتو اوكلماتو څخه ده

ملاعلي قاري رحمه الله ذكر كري دي كه څوک پوښتنه وكري چي كه چيري حقيقي معنى ده كلام الله كلام نفسي وي او دغه مركب له سورتو او اياتو

څخه ني معنی مجازي سي نو بيا څو بايد دغه خبره صحت ولري چي يوڅوک
ووايي چي دغه نظم چي مرکب دي له سورتو اواياتو څخه اومعجز دي دا کلام
الله نه ده څکه دمجازي معنی نفی صحي کيږي اوحال داده چي اجماع غوټه
سوي ده پرخلاف ددي خبري

دی مبارک وايي چي زه وايم چي تحقيق داده چي کلام الله اسم مشترک ده تر
مابين دکلام نفسي دالله تعالی او ددغه نظم چي مرکب ده دواړه څني اراده
کيداسي ليکن کله چي کلام نفسي څني اراده سي بيا معنی دکلام الله داده
هغه کلام نفسي چي قائم ده په ذات دالله تعالی پوري اوچي کله دغه نظم
مرکب څني اراده سي نوبيا معنی د کلام الله داده هغه نظم مرکب چي دالله
تعالی مخلوق دي دلته څني مراد کلام نفسي دالله جل جلاله ده

(فِي الْمَصَاحِفِ مَكْتُوب) يعني ليکل سوی په مصاحفو کي په واسطه دنقش
اوشکلو دحروفو اوکلماتو سره څکه نفس کلام نفسي نه ليکل کيږي؟
مصاحف دمصحف جمع ده ماخوذ له دي قوله اصحف الکتاب يعني ضم
ني کري بعضي پاني وبعضو ته په گنډلو اوجوړلو سره بيا خاص سو په مابين
د دوو دوتنو پوري په شرط دکتابت دقران

(وَفِي الْقُلُوب مَحْفُوظ)يعني محفوظ ده په زړو زموږ کي په واسطه دالفاظو
خياليه و چي صور ذهنيه دي څکه نفس کلام نفسي چي قائم ده په ذات دالله
تعالی پوري نه حاصليږي په ذهنو او زړو کي

(وعَلى الألسن مقروء)يعني ويل کيږي په ژبو سره په هغه حروفو اوکلماتو
سره چي تلفظ ورباندي کيږي او اوريدل کيږي څو ددي سره سره کلام الله
حال نه ده په مصاحفو کي او نه په زړوکي اونه په ژبوکي بلکه يو معنی قائمه
ده په ذات دالله جل جلاله پوري حفاظت ني کول کيږي په الفاظو مخيلو
سره اوليکل کيږي په هغه نقش اوشکل سره چي موضوع ده لپاره دحروفو او

ویل کیږي په هغه حروفو اوکلماتوسره چې دلالت کوي پرکلام نفسي دالله تعالی

(وعَلَى النَّبِي عَلَيْهِ الصَّلَاة وَالسَّلَام منزل)ماخوذ ده له تنزیل څخه معنی دتنزیل نازلول په طریقه دتدریج سره یعني نازل سوی ده کلام الله پرنبي علیه السلام په واسطه دجبرائیل علیه السلام په تدریج لکه چې ویلي دي الله جل جلاله (نَزَلَ بِهِ الرُّوحُ الْأَمِينُ(۱۹۳)عَلَى قَلْبِكَ لِتَكُونَ مِنَ الْمُنْذِرِينَ(۱۹٤)الشعراء _یعني نزول کړی ده په ده سره جبرائیل علیه السلام ستاپر زړه باندي لپاره ددي چې ته سې له بېروونکو څخه

(ولفظنابِالقرآنِ مَخْلُوق)یعني تلفظ زموږ په قران مخلوق ده خکه تلفظ صوت ده مکیف په کیفیت دحروفو معلومیږي حدوث ددي صوت بالمشاهده اوهر حادث مخلوق ده

(وكتابتنالهٗ مخلوقة وقراءتنا لهٗ مخلوقة)داقول وقراءتنا له تاکید ده لپاره ددي قول ولفظنا بالقران او داهم ممکنه ده چې مراد له قراءة څخه تصور دحروفو اوکلماتو بیله تلفظه یعني لیکل زموږ قران لره او قرائت زموږ قران لره مخلوق دي خکه دا زموږ له افعالو څخه دي او زموږ افعال ټول مخلوق دي په تخلیق د الله جل جلاله

(والقرآن غير مَخْلُوق)یعني هغه کلام نفسي چې قدیم ده اوقائم ده په ذات دالله تعالی پوري هغه غیرمخلوق ده اودغه کاغذ اوحروف اوکلماتي ټول مخلوق دي او اسباب دي بندګان محتاج دي په فهمولو کي دقران ودي اسبابو ته نو هغه خوک چې ووایي کلام الله مخلوق ده نو هغه کافرده او هغه خوک چې وایي قران مخلوق ده او اراده ني په دي سره کلام نفسي دالله تعالی وي هغه کافرده خکه داقول ده په نفي دصفت ازلي دالله جل جلاله او ګرځول دي دالله تعالی محل لپاره دحوادثو او محل دحوادثو حادث وي او هغه خوک چې

وايي قران مخلوق ده او اراده ئي په دي سره كلام لفظي وي دا كفر نه ده ليكن دغه اطلاق خطا بلل كيږي په نزد دعلماو .

دامام ابو الحسن اشعري رحمه الله تعالى رايه داده چي كلام نفسي دالله تعالى اوريدل ممكن دي خو په خارق العادة ډول سره ليكن ابو اسحاق اسفرائينى رحمه الله تعالى وايي چي اوريدل دكلام نفسي دالله جل جلاله ممكن نه دي ځكه سمع عبارت ده له هغه قوة څخه چي ښودل سوى ده په هغه پله كي چي غوږول سوي ده په بيغ كي دسوروي دغوږ ادراک كيږي په دي قوت سره داصواتو په داسي طريقه چي ورسيږي دېته هغه هواء چي مكيفه وي په كيفيت دصوت او كلام نفسي دالله تعالى منزه ده له حرف اوصوت څخه اشاره كوي دېته داقول دالله جل جلاله (نَزَلَ بِهِ الرُّوحُ الأَمِينُ(١٩٣)عَلَى قَلْبِكَ لِتَكُونَ مِنَ الْمُنْذِرِينَ(١٩٤) الشعراء خوښ كرى ده داقول امام ابومنصور الماتريدي رحمه الله تعالى بيا نومعنى ددي ايت (حَتَّى يَسْمَعَ كَلَامَ اللَّهِ) داده چي واوري هغه څه چي دلالت كوي پر كلام نفسي دالله تعالى باندي

وَمَاذكره الله تَعَالَى فِي الْقُرآن حِكَايَة عَن مُوسَى وَغَيره من الْأَنْبِيَاء عَلَيْهِم السَّلَام وَعَن فِرْعَوْن وابليس فَإِن ذَلِك كُله كَلَام الله تَعَالَى إِخْبَارًا عَنْهُم وَكَلَام الله تَعَالَى غير مَخْلُوق وَكَلَام مُوسَى وَغَيره من المخلوقين مخلوق وَالْقُرآن كَلَام الله تَعَالَى فَهُوَ قديم لَا كَلَامهم

---

اوهغه چې ذکر کړي دي الله تعالی په قران کې دحکايت په توګه له موسی عليه السلام اوله نورو انبياوعليهم السلام او له فرعون او ابليس څخه نو دا ټول دالله تعالی کلام او له هغو څخه اخبارده او دالله تعالی کلام غيرمخلوق ده او کلام دموسی او دنورو مخلوقاتو مخلوق ده اوقران کلام الله ده نو هغه قديم ده نه د دوی کلام

## تشريح

(وَمَاذكره الله تَعَالَى فِي الْقُرآن حِكَايَة عَن مُوسَى وَغيره من الْأَنْبِيَاء عَلَيْهِم السَّلَام وَعَن فِرْعَوْن وابليس فَإِن ذَلِك كُله كَلَام الله تَعَالَى إِخْبَارًا عَنْهُم)په دې قول کې د امام اعظم رحمه الله تعالی اشاره ده ودفعې ته سوال بيان دسوال داده چې کلام لفظي چې مرکب ده له سورتو او اياتوڅخه دلالت کوي پر کلام نفسي باندې اوکلام لفظي مشتمل ده پرقصو دهغو خلکو چې مخکې تير سوي دي اوبيان ددې قصو په صيغو دماضي سوی ده نو څنګه تصور کيدا سي چې اخبار دې وکړل سي په صيغو دماضي سره په هغه کلام نفسي کې چې قديم ده چې مدلول دکلام لفظي ده ځکه دغه قصې موجودې نه وې هلته بلکه ورسته موجودې سوې بيان دجواب ئې داده چې نفس اخبار قديم ده او قائم ده په ذات دالله تعالی پورې اودا صيغې دماضي له خواصو دکلام لفظي څخه دي نو لکه څنګه چې روا ده ورستوالي داخبار له مخبرعنه څخه دارنګه روا ده تقديم او مخکې والي داخبار پر مخبر عنه باندې ځکه مخبر دلته الله

جل جلاله ده اوهغه عالم ده په علم قديم سره پر دي قصو باندي .
نومطلب دعبارت داسو چي اخبار دالله جل جلاله له موسى عليه السلام اوله
نورو انبياو علهم السلام څخه او اخبار له فرعون او ابليس څخه په خپل
كلام قديم سره چي منزه ده له حرف او صوت څخه او له لوازمو دحرف او
صوت لكه داچي صيغه دماضي ده او يا مضارع او يا امر نهي خكه نقل سوي
په قران كي كلام دبندګانو دمعنى په اعتبار سره نه دلفظ په اعتبار تانيد
كوي ددي خبري دا چي په قدر د درو اياتو قران معجز ده دانسان له طاقت
څخه وتلى ده او ښكاره خبره ده چي هغه كلام دبندګانو چي نقل سوي ده په
قران كي زيات ده پر درو اياتو نو هغه قران چي هغه كي اخبار سوى وي له
انبياو عليه السلام څخه او يا فرعون او ابليس څخه او هغه قران چي هغه
كي اخبار نه وي سوى لكه ايت كرسي دا ټول كلام دالله تعالى ده نه دبندګانو
(وَالْقُرْآنُ كَلَامُ اللهِ تَعَالَى فَهُوَ قَدِيمٌ لَا كَلَامُهم)يعني چي كله ثابته سوه چي قران
دالله تعالى كلام ده نوقديم ده لكه ذات دالله تعالى خكه صفت تابع كرزي
دموصوف نه كلام دموسى عليه السلام او نورو انبياو عليه السلام او فرعون
او ابليس خكه هغه حادث ده لكه ذوات د هغوى په بعضو نسخو كي دلته
دامي دي والقران كلام الله لا كلامهم بيا ني معنى داده چي قران كلام دالله
تعالى ده كلام د دوي نه ده

وَسمع موسَى عَلَيْهِ السَّلَام كَلَام الله تَعَالَى كَمَا فِي قَوْله تَعَالَى[وكلم الله مُوسَى تكليما] وَقد كَانَ الله تَعَالَى متكلما وَلم يكن كلم مُوسَى عَلَيْهِ السَّلَام وَقدكَانَ الله تَعَالَى خَالِقًا فِي الْأَزَل وَلم يخلق الْخلق .

---

او واوريدئ موسى عليه السلام كلام دالله تعالى لكه په دي قول كي دالله تعالى وكلم الله موسى تكليما(خبري وكري الله تعالى دموسى عليه السلام سره) بي شكه الله جل جلاله وو متكلم هلته جي لا ني خبري نه وي كري له موسى عليه السلام سره اوبي شكه الله تعالى وو خالق په ازل كي هلته لا جي ني مخلوق نه وو پيدا كرى

## تشريح

وَسمع مُوسَى عَلَيْهِ السَّلَام كَلَام الله تَعَالَى كَمَا فِي قَوْله تَعَالَى[وكلم الله مُوسَى تكليما]يعني واوريدى موسى عليه السلام بيلا واسطي دملك كلام دالله دجل جلاله جي قديم اوقائم ده په ذات دالله تعالى پوري خكه خداي پاک ددي قدرت لري جي خبري وكري له مخلوق سره له تولو جهاتو او يا له يوه جهته بيله واسطي او بيله اسبابو او ور واوري دغه كلام ومخلوق ته په اسبابو سره لكه حرف اوصوت خكه مخلوق محتاج ده ودي اسبابو ته په فهمولو كي د كلام ازلي دالله جل جلاله لكه جي فرمائي الله تعالى وكلم الله موسى تكليما يعني خبري وكري الله تعالى له موسى عليه السلام سره. ذكر دتكليم ددي لپاره ده جي خوك دا توهم ونكري جي موسى عليه السلام سره به الله تعالى خبري كري بالواسطه نو معنى دايت داسوه جي خبري وكري الله تعالى له موسى عليه السلام بيله واسطي دملك ليكن ترشادپردي اوحجاب بعضي علماو ويلي دي جي الله تعالى جي به كله دموسى عليه السلام سره خبري كولي نواوريدي به موسى عليه السلام له وريخي لخخه جي هغه وريخ دستني پشان

وه .

(وَقدكَانَ الله تَعَالَی متکلما وَلم یکن کلم مُوسَی عَلَیه السَّلَام) ورستنی جمله حال ده یعني وو الله جل جلاله متکلم په ازل کې په داسې حال کې چې دموسې علیه السلام سره ئې لاخبرې نه وې کړې بلکه خپله موسې علیه السلام لا پیداسوی نه وو حاصل داسو چې دتکلم اوتکلیم ترمنځ فرق سته خکه تکلم صفت حقیقیه ده قائم په ذات دالله تعالی پورې قطع نظر له حضوره دمخاطب او له وجوده دسامع او تکلیم صفت حقیقیه محضه نده بلکه دا متضمن ده معنی لره داسماع( وراورول) دا نسې معنی ده تحقق نسې پیدا کولای بیله وجوده دسامع .

(وَقدكَانَ الله تَعَالَی خَالِقًا فِي الْأَزَل)هرکله چې امام اعظم رحمه الله تعالی مقصود له دغه مخکني قوله څخه(وقد کان متکلما الخ) دا وو چې دا ښکاره کړې چې صفت کلام دالله جل جلاله داسې نه ده چې موقوف دې وې پر حضور دمخاطب او پر وجود دمغه نو اراده ئې وکړه ددې خبرې چې ښکاره کړې دا چې دالله جل جلاله دټولو صفاتو همدا حکم ده لپاره ددې چې څوک دا توهم ونکړې چې دا حکم به مختص وې په صفت کلام پورې نو خکه ووېل (وقد کان الله تعالی خالقا في الازل ولم یخلق الخلق) دلته هم دا ورستنیجمله دمخکنی جملې په شان جمله حالیه ده یعني وو الله جل جلاله خالق په ازل کې په داسې حال کې چې لا ئې پیدا کړی نه وو مخلوق

امام اعظم رحمه الله تعالی اکتفاء وکړه په صفت فعلیه سره چې تخلیق ده ذکر ئې نکو له صفاتو ذاتیه و څخه یو صفت خکه توهم دتوقف دصفاتو فعلیه و پر وجود دمتعلق دپر ښکاره ده تر توهم دتوقف دصفاتو ذاتیه و نو کله چې دالله جل جلاله صفات فعلیه موقوف نه وې پر متعلق باندې نو نه توقف د صفاتو ذاتیه و پر متعلق بالدې معلومیږي په بهتره او اولی طریقه

سره

په بعضي نسخو کي دلته داسي الفاظ دي(وكان الله خالقنا قبل ان يخلق الخلق حقيقة) يعني الله جل جلاله خالق وو په ازل کي حقيقة داسي نده لکه ابن ابي شريف چي ويلي دي چي الله تعالى خالق وو په ازل کي بالقوة څکه له قوله دده څو ددي توهم پيداکيږي چي خالقيت دالله جل جلاله ممکن ده دوقوع اولا وقوع احتمال لري په يوه زمانه کي حال دا چي داسي نده څکه الله جل جلاله په ازل کي خالق وو او دا ورستوالي دمتعلق دتخليق دا نه واجبوي چي نفي دخلق دي صحت ولري څکه ډير فرق سته تر مابين دهغه چي بالفعل قادر وي پر کتابت باندي څو څندوي ئي تر وخت د ارادي او دهغه چي کاتب بالقوه وي في الحال عاجزه وي له کتابت څخه ليکن ورته ممکن وي په راتلونکي زمانه کي

خلاصه داسوه چي الله جل جلاله داسي نده چي مستحق دي وګرزي دنامه دخالق ورسته تر پيدا کولو دمخلوق اويا مستحق دي وګرزي دنامه دباري ورسته تر پيداکولو دبريه يعني عالم بلکه الله جل جلاله ته دخالقيت او ربوبيت صفتونه هلته لا حاصل وو چي هيڅ مخلوق او مربوب نه وو

## فَلَمَّا كَلَّمَ اللهُ مُوسَى كَلَّمَهُ بِكَلَامِهِ الَّذِي هُوَ لَهُ صِفَةٌ فِي الْأَزَلِ

هركله چې الله تعالى اراده وكړه ددې چې خبرې وكړي له موسى عليه السلام سره نوئې خبرې وكړي له ده سره په هغه كلام چې دالله تعالى ازلي صفت ده

### تشريح

(فَلَمَّا كَلَّمَ اللهُ مُوسَى كَلَّمَهُ بِكَلَامِهِ الَّذِي هُوَ لَهُ صِفَةٌ فِي الْأَزَلِ) يعني هركله چې الله تعالى اراده وكړه دخبرو له موسى عليه السلام سره نو خبرې ئې وكړي له ده سره په خپل هغه كلام سره چې دده ازلي صفت ده اوهيڅ تغير اوتبديل نه قبلوي ليكن فهم د موسى عليه السلام په تخليق دالله تعالى وو چې الله تعالى پيداكړو حروف او اصوات له يوه جهته او يا له ټولوجهاتو څكه موسى عليه السلام محتاج وو ودې حروفو او اصواتو ته په فهمولو كې دكلام دالله تعالى

ملا علي قاري رحمه الله تعالى وايي هغه كلماتي چې واوريدې موسى عليه السلام له درختې څخه حادثې اومخلوقې دې ليكن دلالت كونكې دې د الله جل جلاله پرهغه كلام چې هغه دده ازلي او حقيقي صفت ده او داكلماتې نقش كړل سوې وې په لوح محفوظ كې مخكې تر پيداكيدو داسمانو او مځكې

## ايا نبي عليه السلام خبرى وكړې له الله تعالى سره په معراج كې

ذكر كړي دي امام نووى رحمه الله تعالى په شرحه كې دمسلم چې علماو اختلاف كړې په دې كښې چې ايا نبي عليه السلام خبرې وكړې له الله جل جلاله سره په شپه كې داسراء بلا واسطې لكه له موسى عليه السلام سره او كه ئې ندي كړې روايت سوى ده له امام اشعرى رحمه الله تعالى څخه او دامې دبعضې متكلمينو علماو څخه چې خبرې ئې وكړي له نبي عليه السلام سره او بعضې علماو داقول منسوب كړي وجعفر بن محمد وابن مسعودوابن عباس ته رضي الله تعالى عنهم امام نووى رحمه الله تعالى وايي چې دامستفاد ده له حديثه دليلة الاسراء چې روايت ئې سوى په صحيحينو كې(قال فَلَمْ أَزَلْ

أرْجِعُ بَيْنَ رَبِّي وَبَيْنَ مُوسى حَتَّى قالَ يامُحَمَّدُاِنَّهُنَّ خَمْسُ صَلَوَاتٍ كُلَّ يَوْمٍ ولَيْلَةٍ)

وَصِفَاته كلهَا فِي الازل بِخِلَاف صِفَات المخلوقين يعلم لَا كعلمنا وَيقدر لَا كقدرتنا وَيرى لَا كرؤيتنا

صفات دالله جل جلاله ټول واقع دي په ازل کي مخالف دي له صفاتو د مخلوق سره علم لري الله تعالی داسي نه لکه زموږ علم او قدرت لري داسي نه لکه زموږ قدرت او ليدل کوي داسي نه لکه زموږ ليدل

تشريح

(وَصِفَاته كلهَا بِخِلَاف صِفَات المخلوقين)يعني صفات دالله جل جلاله که ذاتي صفات دي او که فعلي مخالف دي له صفاتو سره دمخلوق خکه صفات دالله جل جلاله ټولي ازلي دي بلابدايه او ابدي دي بلا نهايه لکه ذات دالله جل جلاله اوصفات دمخلوق مخلوق او حادث دي لکه ذوات د مخلوقاتو لکه چي الله تعالی ويلي دي(لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَالسَّمِيعُ الْبَصِيرُ(١١) الشورى

او که ستاپه زړه کي داشبهه پيدا سي چي کله دالله جل جلاله صفات مخالف سو له صفاتو سره دمخلوق نو بيا ولي صفت ته دالله جل جلاله هم علم ويل کيږي او صفت ته دمخلوق هم علم ويل کيږي نو جواب ئې داده چي دا تشارک لفظي ده يعني صفات دالله تعالی اوصفات دمخلوق په اسماو کي يو له بل سره شراکت لري نه په معنی کي بلکه معناګان ئې بيل بيل دي .

(يعلم لَا كعلمنا)يعني الله جل جلاله علم لري خو داسي نه لکه زموږ علم خکه زموږ علم حادث ده او په حادث علم کي معارضه کوي وهم له عقل سره لدي وجهي ډېر ليدل کيږي اختلاف ترمنځ دعقلاو په مسائلو نظريه و کي لکه

دا چې يوقول کوي په حدوث دعالم او بل په قدم دعالم او علم دالله جل جلاله پورته ده لدي چې دا ضروري ده اويا کسبي او يا تصوري او ياتصديقي ملاعلي قاري رحمه الله تعالى وايي چې موږ علم لرو پر شيانو باندي په الاتوسره لکه (سترګي غوږونه عقل او داسي نور) او په دي سره چې حاصل سي صور داشياو زموږ په ذهنو کي او الله تعالى علم لري پر حقيقت دټولو دشيانو پر هغه طريقه چې دی موجود دي په واقع کي هغه کلي وي او که جزئي ظاهري وي او که باطني په خپل علم سره چې دده ازلي او ابدي صفت ده

(وَيقدر لَا كقدرتنا)يعني الله جل جلاله قادر ده خو داسي نه لکه موږ خکه الله تعالى قادر ده په خپل قدرت کامله تامه ازليه ابديه سره پر ټولو مقدوراتو باندي دلالت کوي پر قدرت دالله جل جلاله دا چي الله تعالى پيدا کونکی داسمانو او مځکي او دا چي نه پيداکيږي بوشي له شيانو پورته او کښته ليکن هغه په قدرت دالله جل جلاله ده او په تقدير دده داهم تول بيله الا تو او بيله کومک کونکو څخه او قدرت زموږ خو ناقص ده لکه خودي موږ چي ناقص يو پر يو څه محدود شيانو قدرت لرو هغه هم په الا تو ملګرو کومک کونکو سره دليل دقدرت کامله دالله جل جلاله داقول دده ده (وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ(١٢٠)المائدة

(وَيرى لَا كرؤيتنا)يعني الله جل جلاله وېني شيان خو داسي نه لکه زموږ ليدل خکه موږ وېنو شکلونه او رنګونه په الاتوسره لکه سترګي او په شرطو سرا لکه زمانه مکان جهت مقابله ددي سره سره زموږ ديد محدود هم ده تجاوز نکوي وهغه شيې ته چې ترشا ددېوال وي حتی موږ نه وېنو هغه څه چې زموږ په نسوکي دي او هغه چې ترشا زموږ دي او الله جل جلاله وېني شکلونه او رنګونه په خپل ذاتي صفت سره چي بصر ده بيله الاتو او بيله شروطو

همداسي ليدل دالله جل جلاله محدود ندي بلكه احاطه كوي ديد دالله تعالى پرټولو شيانو په داسي ډول چي يو زره شي هم په اسمانو اوځمکو کي وتلي نسي له ليدلو دالله تعالى خپله الله جل جلاله وايي (أَلَمْ يَعْلَمْ بِأَنَّ اللَّهَ يَرَى(١٤) العلق_ايا دى نه پوهيږي چي ببشکه الله تعالي ويني

وَيتَكَلَّمُ لَا كَكلامنا وَيسمع لَا كسمعنا وَنحن نتكلم بالآلات والحروف وَالله تَعَالَى يتَكَلَّم بِلَا آلَة وَلَا حُرُوف والحروف مخلوقة وَكَلَام الله تَعَالَى غير مَخْلُوق .

الله جل جلاله خبري کوي داسي نه لکه زموږ خبري او هغه اوربدل کوي داسي نه لکه زموږ اوربدل او موږ خبري کوو په الاتو او حروفو سره او الله تعالى خبري کوي بيله آلي اوبيله حروفو څخه اوحروف مخلوق دي او کلام دالله تعالى غير مخلوق ده

تشريح

(وَيتَكَلَّمُ لَا كَكلامنا)يعني الله تعالى خبري کوي خوداسي نه لکه موږچي ني کوو څکه موږخبري کوو په الاتو سره لکه ستونى ژبه او الله تعالى خبري کوي بيله آلي اوشرط څخه څکه الله تعالى منزه ده له دي چي احتياج دي و لري والاتو اوشرطو ته په ټولو صفاتو او افعالو کي څکه احتياج له علامو دحدوث اوامکان څخه ده الله تعالى ګرځولي ده غناء خاصه دخپل خان لپاره او ګرځولي لي دي ټول ممکنات محتاج والاتو اوشروطو ته نو الله غني ذات ده له ټولوشيانوڅخه اوممکنات داسي لدي .

(وَيسمع لَا كسمعنا)يعني الله جل جلاله اوري خوداسي نه لکه موږچي اوربدل کوو څکه موږ اوربدل کوو په الاتو سره لکه غوږ اوپه شرطو سره لکه زمانه اوجهت او قرب او الله جل جلاله اوري کلمات مفرده مرکبه اواصوات ټول

په داسي طريقه چي يوشي هم له سمع څخه دالله تعالى وتلئ نده بيله الاتو اوشرطو څخه په خپل سمع سره چي دالله جل جلاله ازلي ابدي صفت ده

(وَنحن نتكلم بالآلات والحروف وَالله تَعَالَى يتكَلَّمُ بِلَا آلَة وَلَاحُرُوف)يعني موږ خبري كوو په الاتو سره لكه ستونى ژبه شونډي غاښونه او په حروفو سره چي عبارت دي له هغه اصواتو څخه چي اعتماد او تكيه كوي پرمخارجو باندي.الله تعالى خبري كوي بيله آلي اوبيله حروفو خكه الات او حروف مخلوق او محدث دي احتياج ومحدثاتو ته خاصه دمخلوق ده نوكلام دالله تعالى منزه ده له اصواتو او حروفو څخه

(والحروف مخلوقة وَكَلَام الله تَعَالَى غيرمخلُوق)حروف مخلوق دي خكه حروف حادث دي.كلام دالله تعالى غيرمخلوق ده خكه كلام دالله تعالى صفت ده اوصفت لازم وي له موصوف سره هركله چي موصوف قديم وي نوضرور به ئي صفت هم قديم وي

وَهُوَشَيْء لَا كالأشياء وَمعنى الشَّيْء إثْبَاتُه بِلَاجسم وَلَاجَوْهَر وَلَاعرض وَلَاحد لَهُ وَلَا ضد لَهُ وَلَا ند لَهُ وَلَا مثل لَهُ

---

الله جل جلاله يوشی ده خو دامي نه لکه نور شيان او معنی ددي(چي الله جل جلاله يو شی ده نه لکه نورشيان) ا ثبات دوجود دده بېله جسمه څخه اوبېله جوهر څخه اوبېله عرض څخه اوحد نهايه نسته دلره اونه ضد سته دلره اونه شريک سته دلره او مثل سته دلره

## تشريح

(وَهُوَشَيْء لَا كالأشياء) شی په اصل کي مصدر ده په معنی دمفعول هم راخي لکه په دي قول کي دالله تعالی (وَاللَّهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ (٢٨٤) البقرة) په دغه معنی باندي يي اطلاق پر الله جل جلاله جائز نده او کله کله مستعمليږي په معنی دفاعل لکه په دي قول کي دالله جل جلا له(قُلْ أَيُّ شَيْءٍ أَكْبَرُ شَهَادَةً قُلِ اللَّهُ شَهِيدٌ بَيْنِي وَبَيْنَكُمْ) الانعام) په دغه وخت کي يي اطلاق پر الله جل جلاله باندي جائز ده خکه شی اسم ده لپاره د موجود اطلاق يي پر معدوم باندي نه کيږي الله جل جلاله هم موجود ده نو الله تعالی شی ده خو دامي نه لکه نور شيان څکه الله تعالی شی ده په صفت دفاعليت سره واجب الوجود ده په ذات اوصفاتو کي ازلي ده بلا بدايه ابدي ده بلانهايه فاعل ده دټولو مفعولاتو او خالق ده دټولو مخلوقاتو او دا نور شيان خو ممکنة الوجود دي په ذواتو اوصفاتو کي موصوف دي په مفعولية او مخلوقية سره دامام اعظم رحمه الله تعالی لدي قوله څخه چي شئ لا کا لاشياء دا معلومه سوه چي الله جل جلاله په هيڅ يو مکان او زمان کي نده خکه مکان او زمان مخلوق دي او الله تعالی ازلي ذات ده په ازل کي موجود وو هلته نه زمانه وه او نه مکان

(ومعنى الشيء إثباته)يعني معنی دشی اثبات دوجود دذات دده بیله جسمه اوجوهر او عرض ځکه په بعضي نسخو کي دلته داسي الفاظ دي ومعنى الشيء الثابت یعني شی په معنی دثابت ده هغه چي په معنی دموجود ده نو شی ثابت موجود تول سره برابر دي په دې کښي چي اطلاق ئې پر واجب الوجود باندي هم کيږي او پر ممکن الوجود باندي هم، پر دواړو نسخو داقول بیان ده لپاره دمعنی دشي په داسي حال کي چي شی مقید ده په دي قید سره لاکالاشیاء یعنی معنی ددي چي الله جل جلاله شی ده خو نه لکه نورشیان اثبات دوجود دذات دده بیله جسمه او جوهر اوعرض ځکه اوپر دوهمه نسخه بي معنی داده چي ثابت ده وجود دذات دده بیله جسمه الخ

(بلاجسم)ځکه هرجسم منقسم وي تقسیمیږي اوهرمنقسم مرکب وي له اجزاو ځکه او هر مرکب محدث وي نوی پیدا سوی وي او هرمحدث محتاج وي ومحدث پیداکونکی ته، الله جل جلاله منزه ده له احتیاج ځکه وبل چاته

## دامام صاحب رد پرمجسمه و اوکرامیه و باندی

په دي قول کي دامام اعظم رحمه الله تعالی رد ده پر مجسمه و باندي ځکه هغوی الله جل جلاله جسم بولي تعالی الله عن ذلک علوا کبیرا

(ولاجوهر)ځکه مرادله جوهرڅخه دلته هرممکن چي قائم بذاته وي په دي قرینه چي په مقابل کي دعرض راغلی ده او داجوهر له وجهي دامکان او حدوثه محل وي لپاره دعوارضو او حوادثو. الله جل جلاله منزه ده لدي ځخه چي محل دعوارضو او حوادثو دي سي

په دي قول کي رد ده پر کرامیه و باندي ځکه هغوی اطلاق کوي پر الله جل جلاله باندي دجوهر

(ولاعرض)ځکه عرض هغه ممکن ده چي قائم بالغیر وي محتاج وي په وجود کي وبوه محل ته چي په هغه پوري ودریږي لکه رنګونه مقادیر حرکات

سکنات خوندونه بوبونه اوالله منزه ده لدي چي احتياج دي پيداکړي ومحل نه ځکه دا له علامو دحدوث او امکان څخه الله جل جلاله نه حادث ده او نه ممکن

(وَلَاحد لَهُ)حد دوي معناوي لري کله اراده کيږي په حد سره تعريف دماهيت په ذاتياتو دهغه په دې معنی حد نسته الله تعالی لره ځکه الله تعالی فرد ده اجزاوي نه لري نو مطلب داسو چي الله جل جلاله مرکب نده له جنس او فصل څخه چي تعريف يه وکړل سي په ذاتياتو سره. ډير ښه ده قول دامام ابومنصور الماتريدی دی مبارک وايي که څوک پوښتنه وکړي له الله جل جلاله څخه په ماهو سره نو موږ وايو سائل ته که ستا اراده ړي دا چي دالله جل جلاله نوم څه ده نو نوم خو يې الله ده اوکه ستا اراده وي دا چي صفت دالله تعالی څه ده نو صفت دالله تعالی خو داده چي الله جل جلاله بصير سميع ده اوکه ستا اراده وي چي فعل دالله تعالی څه ده نو فعل دالله تعالی خو داده چي پيداکړی دي الله جل جلاله ټول مخلوقات او که ستا اراده وي چي ماهيت دده څه ده نو موږ وايو چي الله تعالی پورته ده له جنس څخه .

اوکله اراده کيږي په حد سره نهايه ديوشي په دې معنی حد نسته الله تعالی لره ځکه نهايه له خواصو داجسامو څخه ده او الله جل جلاله منزه ده له جسميت څخه نو منزه ده له خواصو دجسميت څخه هم .

(وَلَا ضد لَهُ)يعني دابد لپاره دده په وړاندې کوم ممانع او منازع جګړه کونکی نسته

(وَلَا ند لَهُ)يعني نه مشابه سته الله تعالی لره او نه شريک سته (فَلَا تَجْعَلُوا لِلَّهِ أَنْدَادًا وَأَنْتُمْ تَعْلَمُونَ (٢٢)البقرة_يعني مه ګرځوئ له الله تعالی سره شريکان .

(وَلَا مثل لَهُ) مماثلة اشتراك ته په نوعه کي ويل کيږي يعني شريک نسته الله

جل جلاله لره په نوعه کي خکه الله تعالی لره نوعه نسته لکه څنګه چي جنس نسته دلره

خلاصه ددي پورته عبارت داسوه چي الله جل جلاله موجود ده قائم ده بنفسه نه جسم ده نه جوهر ده نه عرض ده نه محدود ده نه مثل سته دلره نه شریک او نظیر . عالم ټول اعراض او اجسام او جواهر دي نو نه الله تعالی مشابه ده له یوشي سره او نه یو شی مشابه ده الله تعالی سره

وَله يَد وَوجه وَنَفس كَمَا ذكره الله تَعَالَى فِي الْقُرآن فَمَا ذكره الله تَعَالَى فِي الْقُرآن من ذكر الْوَجْه وَالْيَد وَالنَّفس فَهُوَ لَهُ صِفَات بِلَا كَيف

الله جل جلاله لره صفت د يد او وجه او نفس سته لکه چي ذکر کړي دي الله تعالی په قران کي نو هغه چي ذکر کړي دي الله جل جلاله په قران لکه وجه يد نفس نو هغه صفات دي دلره بلا کيفه

## تشريح

(وَله يَد)يعني الله تعالی لره صفت د يد سته لکه په دي په دي قول کي دالله تعالی (يَدُ اللَّهِ فَوْقَ أَيْدِيهِمْ) الفتح) يعني دالله جل جلاله لاس د دوی تر لاسو پورته ده.

(وَوجه)يعني الله تعالی لره صفت د وجه سته لکه په دي اية مبارکه کي(كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ إِلَّا وَجْهَهُ)القصص)يعني هرشی هلاکيږي خو دالله تعالی ذات به باقي اوپاته وي

(وَنَفس)يعني الله تعالی لره نفس سته لکه په دي قول کي دالله تعالی (تَعْلَمُ مَا فِي نَفْسِي وَلَا أَعْلَمُ مَا فِي نَفْسِكَ )المائدة يعني ته علم لري پر هغه چي زما په نفس کي دي او زه علم نه لرم پر هغه چي ستا په نفس(ذات) کي دي

ملاعلي قاري رحمه الله تعالی وايي هغه خبره چي بعضي خلک يې کوي په باره کي ددي آيت چي اطلاق دنفس پر الله جل جلاله باندي په دي ايت کي دمشاکلة په وجه سوی ده يعني مخکي ذکر دنفس سوی ده دهغه دمناسبت په وجه يې اطلاق پر الله تعالی باندي وسو صحي نده ځکه اطلاق دنفس پر الله تعالی باندي سوی ده په حديث کي بيله دې چي هلته دې بل نفس ذکر سوی وي په مقابل کي دده

## دنفس داشتقاق تحقيق

بيا ورسته دی ذکر کوي چې دنفس په اړه تحقيق داده چې نفس که دماخذ په اعتبار سره له نفَس په فتحه دفاء څخه وو بيا يې اطلاق پر الله تعالی باندي صحي نده اوکه دنفيس څخه وو بيا يې اطلاق پر الله جل جلاله باندي صحي ده ځکه الله تعالی تر ټولو موجوداتو نفيس او عزتمند ذات ده (فَهُوَ لَهُ صِفَات بِلَاكَيفَ)يعني هغه چې الله تعالی ذکر کړي ده په قران کي چې يد وجه نفس دي نوهغه صفات دي الله تعالی لره خو له متشابهاتو څخه دي موږ نه پوهيږو په حقيقت او کيفيت ددي صفاتو نو سپارو علم ددي والله تعالی ته سره له دي چې موږ بيانوو پاکي دالله تعالی له دي چې داسي لاس مخ نفس ولري لکه زموږ

وَلَايُقَال إن يَده قدرته اَونعمَته لِأن فِيهِ إبطَال الصّفةوَهوَقَول أهل القَدروالاعتزال وَلَكِن يَده صفته بِلَاكَيف وغضبه وَرِضَاه صفتان من صِفَات الله تَعَالَى بِلَاكَيف

اوخوك دي داسي نه وايي چي يد دالله تعالى قدرت دالله تعالى ده اويا نعمت خكه دي كي ابطال دصفت ده او دا ابطال دصفت قول دقدريه و او معتزله و ده بلكه يد دالله تعالى صفت ده بلاكيف اوغضب دالله تعالى اورضاء دده دوه صفته دي له صفاتو دده بلاكيف

## تشريح

(وَلَايُقَال إن يَده قدرته اَونعمَته لِأن فِيهِ إبطَال الصّفة)يعني خوک دي داسي نه وايي د تاويل په توګه چي مراد له يد څخه قدرت دالله تعالى ده په دي وجه چي قدرت غالباپه لاس سره ثابتيږي اويامراد ځني نعمت ده په دي وجه چي افاضه دنعمت غالباپه لاس سره وي خکه په تاويل كي ابطال دصفت راځي هغه چي الله تعالى توصيف کړی دځپل ځان په هغه سره خکه چي الله تعالى هرکله ذکر کو يد او ذکر يې نه کو قدرت اويانعمت نو دا ښکاره خبر ده چي مراد له يد څخه بله معنى ده غير له قدرت او نعمت څخه نو ښه خبر موږ لره داده چي ساکت سو له تاويل څخه او وسپارو مراد ددي لفظ وعلم ته دالله تعالى همدارنګه مناسب ده وموږ ته داچي تاويل ونکړو د وجه په ذات سره او دعين په بصر سره او داستواء په استيلاء سره بلکه تفويض وکړو د مراد ددي الفاظو وعلم ته دالله جل جلاله .

(وَهوَقَول أهل القَدروالاعتزال)يعني دغه باطلول دصفت قول اومسلک دقدريه و او معتزله و ده خکه دوی توهم کوي چي په اثبات كي دصفاتو تعدد دقدماء لازميږي ليکن د دوی دغه خبره باطله ده خکه مخکي تير سو چي صفات دالله تعالى نه عين ذات دي اونه غيردي نو تعدد دقدماء نه لازميږي

اهل القدر هغه خلک دي چې انکار کوي له تقديره او وايي چې خالق دافعالو دبندګانو الله تعالى نده بلکه خپله بندګان دي او معتزله يو ښاخ ده له دوی څخه حديث کي راځي چې قدريه مجوسيان ددي امة دي څکه لکه څنکه چې مجوسيان خدايان دوه بولي يوخالق دخير چې دوی ورته يزدان وايي او بل خالق دشر چې دوی ورته اهرمن وايي همداسي قدريه وايي چې خالق دافعالو دبندګانو خپله بندګان دي او خالق ددي نورو شيانو الله تعالى ده

(وَلَكِن يَده صفته بِلَاكَيفَ)يعني موږ عاجزه يو له ادراکه دکيفية اوځرنکوالي ددي صفت لکه څنکه چې عاجزه يو له ادراکه دکيفية دنورو صفاتو دالله جل جلاله او څنکه به ورسيږي هغه فهم چې ناقص اوحادث ده ودرک ته دصفاتو دهغه ذات چې واجب الوجود ده نه بدايه لري او نه هم نهايه نو زموږ اقرار په عجز سره او سپارل دمراد په دي صفت سره وعلم قديم ته دالله جل جلاله چې ابدي اوازلي ده هغه پاي درجه د ادراک زموږ ده په دي باب کي

فخر الاسلام علي البزدوی ويلي دي په اصول الفقه کي چې اثبات د يد او وجه والله جل جلاله ته حق ده زموږ په نبز او دا معلوم دي په اصل کي په وصف سره بيامتشابه دي اوروانده باطلول داصل په سبب دعجزله پيژندلو دکيفية دوصف

## په متشابه کي دوه مذهبه.

يوه سه چې دغه ترک دتاويل په متشابه کي مذهب ده دامام اعظم رحمه الله تعالى او دامذهب ده ديرو صحابه وو اوتابعينو او متقدمينو علماو نو د دوی په نبز وقف په دي ايةمبارکه کي(وَمَا يَعْلَمُ تَأْوِيلَهُ إِلَّا اللَّهُ وَالرَّاسِخُونَ فِي الْعِلْمِ يَقُولُونَ آمَنَّا بِهِ كُلٌّ مِنْ عِندِ رَبِّنَا)پر لفظ دالله باندي کيږي او والراسخون في العلم الخ مستقله جمله بولي او بعضي علماء والراسخون في العلم عطف

كوي پر لفظ دالله باندي او يقولون الخ مستقله جمله بولې والله اعلم

(وغضبه وَرِضَاهُ صفتان من صِفَات الله تَعَالَى بِلَاكَيف)يعني غضب او رضاء دوه صفته دي له صفتو دالله جل جلاله لكه چې ذكر سوي دي په قران كي (رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ) البينة) (وَغَضِبَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ) الفتح) خكه دا آيتونه دلالت كوي پر دي چې الله جل جلاله متصف ده په رضاء اوغضب سره ليكن موږ نه پوهيږو په كيفية ددي صفتو خكه رضاء اوغضب دالله تعالى له متشابهاتو څخه دي او مشابه ندي له هغه غضب اورضاء سره چې زموږ له صفتو څخه دي او نه هم موږ تاويل كوو دغضب په اراده دانتقام او درضاء په اراده دانعام سره

خلق الله تَعَالَى الْأَشْيَاء لَا من شَيْء وَكَانَ الله تَعَالَى عَالما فِي الْأَزَل بالأشياء قبل كَونهَا وَهُوَ الَّذِي قدر الْأَشْيَاء وقضاها

پيدا کړي دي الله جل جلاله ټول شيان بېله کوم شي څخه او وو الله جل جلاله عالم په ازل کې پر ټولوشيانو مخکې د دوی تر پيدانښت او الله جل جلاله هغه ذات ده چې دټولو شيانو تقدير او فيصله يې کړې ده

تشريح

(خلق الله تَعَالَى الْأَشْيَاء لَا من شَيْء)يعني الله جل جلاله پيداکونکی ده دټولو شيانوکه اسمانونه دي اوکه مځکه اوکه هغه چې په اسمانو اومځکې کې دي او يا په مابين کې داسمان او مځکې که ذوات دي اوکه حالات بېله داسې مادې څخه چې هغه ماده دې د دوی ترپيدانښت مخکې وي نو الله جل جلاله مخترع ده داسمانو اومځکې لکه چې فرمايي (فَاطِرِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ) فاطر) يعني الله پيداکونکی ده داسمانو اومځکې بېله مثال سابق څخه دعبد الله بن عباس رضي الله تعالى عنهما څخه منقول دي چې زه نه پوهيدم په معنی دفاطر السموات والارض ترهغه وخته پورې چې ماته دوه کسان صحرايان راغلو او دهغو ترمنځ دعوه وه په څاه کې نو يوه وويل افطرتها يعني په لومړي خل دغه څاه ما کښلې ده

اوداچې الله تعالى ځيني شيان له مادې څخه پيداکړي دا تکر نده له دې خبرې سره ځکه د هغو مادو اصلي ماده هم بېرته الله جل جلاله بېله کوم شي څخه پيداکړې ده چې هيڅ شی هم نه وو نوهرشی دالله تعالى تر تخليق لاندې ده لکه فرمايي (اللَّهُ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ) الزمر) يعني الله تعالى پيداکونکی ده دټولوشيانو

(وَكَانَ الله تَعَالَى عَالما فِي الْأَزَل بالأشياء قبل كَونهَا)يعني الله جل جلاله عالم وو پر ټولوشيانو باندې مخکې ترپيدا کولو د دوی ځکه دغه شيان ټول محدث

نوي پيدا سوېدي په تخليق او تكوين سره دالله جل جلاله او چاره نسته هغه چا لره چې فاعل وي د داسي مظبوطو افعالو چې هغه مشتمل هم وي پر داسي عجائبو اوډېرو حكمتو او غټو نفعو باندي چې عقل ورته حيرانيږي له علم څخه پر دوی باندي مخكې ترايجاد ددوی لكه چې فرما يي الله تعالی (وَكَانَ اللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا (٤٠) الاحزاب) يعني الله جل جلاله په ازل كي لا پر هرشي علم درلود٠

(وَهُوَ الَّذِي قدر الْأَشْيَاء وقضاها)داجمله تعليل ده لپار د مخكنی جملي او واو په دي قول كي وهولپاره دحال ده يعني څنكه به الله جل جلاله عالم نوي پر شيانو باندي په ازل كي حال داده چي الله تعالی هغه ذات ده چي تقدير او فيصله يې كړي دشيانو تقدير او فيصله ديوشي مخكې وي تر وجود دهغه او دا دواړه ببله علم څخه ممكن ندي

وَلَا يكون فِي الدُّنيَا وَلَا فِي الْآخِرَة شَيْء الا بمشيئته وَعلمه وقضائه وَقدره وَكتبه فِي اللَّوح الْمَحْفُوظ وَلَكِن كتبه بِالْوَصْفِ لَا بالحكم

او نه موجوديږي په دنياكي او نه په اخرة كي يوشي مگر په اراده دالله تعالى او علم اوقضاء او تقدير دده او په ليكلو سره دده په لوح محفوظ كي خو هغه يې په خپل وصف سره ليكلى نه امر سره

تشريح

(وَلَايكون فِي الدُّنْيَا وَلَافِي الْآخِرَة شَيْء الابمشيئته )يعني نسته يو شي له جواهرو او اعراضو څخه په دنياكي او په اخرة كي مگر هغه په اراده دالله تعالى او مشيئة دده ده

(وَعلمه وقضائه وَقدره) يعني په علم دده او په فيصله دده او په تقدير دده چي څنگه يې تقدير كړى وي دهغه

(وَكتبه فِي اللَّوح الْمَحْفُوظ)يعني په ليكلو دده په لوح محفوظ كي حديث كي راخي اول هغه شي چي الله تعالى پيداكى هغه قلم وو نوبيا هغه ته الله جل جلاله ووېل وليكه قلم ووېل څه وليكم ياربه الله جل جلاله ورته وفرمايل تول هغه څه وليكه چي دقيامت تر ورځي پوري به وي

(وَلَكِن كتبه بِالْوَصْفِ لَا بالحكم)يعني ليكلى ده الله جل جلاله په لوح محفوظ كي هرشى په اوصافوسره په طريق د اخبار نه په امر سره مثلا ليكل سوي دي چي زيد به مؤمن وي په خپل اختيار سره او عمرو به كافر وي په خپل اختيارسره داسي ندي ليكل سوى چي زيد دي ايمان راوړي او عمرو دي كفر وكړي څكه كه دارنگه وي نوبيا خو زيد مجبورسو پر ايمان راوړلو باندي او عمرو پر كفر باندي. دارنگه مثلا ليكل سوي دي چي فلانكى شي به دونه قدر درون وي او داسي ندي ليكل سوي دونه قدر دي درون سي څكه كه

داسي سي نوشيان به تول موجود سي په دغه وخت كي خكه تصور نسي كيداى ددي چي مخالفت دي وكري مخلوق له امره دخالق

په دي قول كي دامام اعظم رحمه الله تعالى رد ده پر جبريه و باندي خكه دوى وايي چي بند كان مجبوره دي پر خپلو افعالو باندي هيڅ دخل نه لري په ايجاد كي دافعالو خپلو نه په طريقه دتخليق اونه په طريق دكسب او حركات دبندگانو دى دي لكه حركات دجماداتو اختيار نسته دوي لره

وَالْقَضَاء وَالْقَدر والمشيئة صِفَاته فِي الْأَزَل بِلَا كَيفَ

اوقضاء اوقدر اومشيئة دالله تعالى ازلي صفتونه دي بلاكيف يعني بېله څرنګوالي

## تشريح

(وَالْقَضَاء وَالْقَدر والمشيئة)دقضاء اوقدر ترمنځ فرق په اجمال او تفصيل سره ده څکه قضاء فيصله ده دالله جل جلاله په نظام دټولو موجوداتو پر يو خاص ترتيب باندي په طريقه داجمال په لوح محفوظ کي اوقدر تعلق دارادي دالله تعالى ده په مخلوقاتو پوري په طريقه دتفصيل په وختو کي دوجود ددوی او ځيني علماء ددي خبري بالعکس قول کوي

معتزله وايي چي افعال دبندګانو دالله جل جلاله په فيصله اوقضاء سره ندي څکه که افعال دبندګانو دالله تعالى په قضاء سره وي کفر خو داخل ده په افعالوکي نوبيا خو به راضي کيدل په کفر واجب وای څکه رضاء بالقضاء خو واجب ده او داسي نده بلکه رضاء په کفر سره کفرده جواب ددي داده چي دلته دوه شيان دي يو قضاء ده اوبل مقضى يعني هغه شى چي پر هغه قضاء اوفيصله سوي وي کفر مقضى ده دي باندي راضي کيدل واجب ندي بلکه راضي کيدل په قضاء واجب دي

ملاعلي قاري رحمه الله تعالى ددي مسئلي ښه وضاحت کړي ده دی مبارک وايي چي کفر دوه نسبته لري اول نسبت يې الله تعالى ته کيږي په دي معنى چي الله تعالى دخپل حکمت پر مقتضى کفر پيداکړي ده څوک ورباندي اعتراض نسي کولای څکه چي الله جل جلاله مالک ده دټولو شيانو او مالک په خپل ملک هرتصرف چي دده خوښ سي کولای سي اودوهم نسبت دکفر و بنده ته کيږي په دي معنى چي بنده په خپل اختيارسره کفر مختاره کو او پربنده باندي اعتراض کيږي څکه چي الله تعالى دی منعه کړی و له کفره نو په

مختاره كولو دكفر رضاء دالله تعالى ختميږي له ده څخه اودى مستحق گرزي دعذاب

## درضاء بالكفر مسئله

بيا ملاعلي قاري رحمه الله تعالى ذكري دي چي كه څوک دځپل خان په كفر راضي سو داكافر ده په اتفاق سره دعلماء او كه څوک راضي سي په كفر دبل چا نو په كفر كي دده اختلاف دمشانخو سته بعضي علماء وايي چي راضي كيدل په كفر دبل چا كفر ده خو ليكن صحي خبره داده چي راضي كيدل په كفر دبل چا كفر نده

امام اعظم رحمه الله تعالى په تكرارسره ذكر كړه اراده ددې لپاره چي ښه تثبيت وكړل سي ددې خبري چي اراده دالله جل جلاله قديم صفت ده او بل لپاره د ترديد دمذهب دكراميه و اوبعضي معتزله و خكه دوى وايي چي اراده حادث صفت ده او دجمهور معتزله رايه داده چي شر لكه كفر او نور قبيح اعمال په اراده سره دالله تعالى ندي مخكي ذكرسو بطلان ددې قول په تشريح كي ددې قول والقدر خيره وشره

(صِفَاته فِي الْأَزَل بِلَاكَيفَ)يعني قضاء قدر مشيئة دالله تعالى ازلي صفتونه دي ثابت دي په كتاب سنة اجماع سره ليكن له متشابهاتو څخه دي علم نه لري په تاويل ددې صفاتو بغير له الله جل جلاله څخه نو عقل لره لار نسته ودرک ته دكيفية ددې صفاتو

بعضي علماو په دې مقام كي ډيره ښه تشريح ذكر كړي هغه داده چي امتحان دالله تعالى دخپلو بندګانو دوه قسمه ده يو هغه بندګان دالله تعالى دې چي علم لري او دلا زياتو معلوماتو حاصلولو شوق لري ددې بندګانو الله جل جلاله امتحان كوي په منعه كولو سره له تاويل څخه دمتشابهاتو اوبل هغه دي چي علم نه لري ددې خلكو الله تعالى امتحان كوي په دې چي امر كوي

دوی ته په طلب کولو دعلم

يعلم الله تَعَالَى الْمَعْدُوم فِي حَال عَدمه مَعْدُوما وَيعلم انه كَيفَ يكون إِذا أوجده وَيعلم الله الْمَوْجُود فِي حَال وجوده موجودا وَيعلم انه كَيفَ يكون فناؤه وَيعلم الله الْقَائِم فِي حَال قِيَامه قَائِما وَإِذا قعد فقد علمه قَاعِدا فِي حَال قعوده من غير ان يتَغَيَّر علمه أَو يحدث لَهُ علم وَلَكِن التَّغَيُّر وَالِاخْتِلَاف يحدث عِنْد المخلوقين .

الله جل جلاله علم لري پر معدوم شي باندي کله چي معدوم وي دعدم په صفت اوعلم لري پردي چي دا معدوم شی به څنګه وي که چيري پيداکړي هغه او علم لري الله تعالی پرموجود باندي په حال کي دموجوديت دموجود علم او علم لري پردي چي څنګه به وي فناءکيدل ددې موجود اوعلم لري الله تعالی پر ولاړ باندي په حال کي دولاړي دولاړي علم اوچي کله کښيني نوبيا علم لري ده باندي دناستي علم په حال کي دناستي ببله دي چي تغير دي راسي په علم کي دالله تعالی اويانوی پيدا سي دلره علم ليکن تغير اواختلاف داحوالو په مخلوقاتو کي راځي

## تشريح

(يعلم الله تَعَالَى الْمَعْدُوم فِي حَال عَدمه مَعْدُوما)مقصود دامام اعظم رحمه الله تعالی له دي کلام څخه اثبات دعلم ده والله جل جلاله ته پرتولو هغو شيانو چي واقع سوې دي او يا له دي ورسته واقع کيږي سره له دي چي تغير نه راځي په علم کي دالله تعالی او نه په يوصفت کي له صفاتودده. يعني الله جل جلاله ببژني او علم لري پرمعدوم باندي په حال کي دعدم دده دعدم په صفت

په دي قول کي دامام اعظم رد ده پر فلاسفه و باندي څکه دوی وايي چي الله تعالی علم نه لري پرهغو جزئياتو چي تغير خوري لکه ناسته ولاړه او داسي نور

(ويعلم انه كيف يكون إذا أوجده) ددې خبري توضيح داده چې کله يوشی نيستي وي في الحال خو ورسته پيداکيږي الله جل جلاله علم لري پر دې شي باندي اوس چې څنګه به وي چې کله پيداسي اوکله يوشی نيستي وي في الحال او ورسته هم نه پيداکيږي خو دالله جل جلاله علم سته پر دې باندي چې که چيري وای نو داسي به وای لکه په دي قول كي دالله تعالى (وَلَوْ تَرَى إِذْ وُقِفُوا عَلَى النَّارِ فَقَالُوا يَالَيْتَنَا نُرَدُّ وَلَا نُكَذِّبَ بِآيَاتِ رَبِّنَا وَنَكُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ(٢٧)بَلْ بَدَا لَهُمْ مَاكَانُوا يُخْفُونَ مِنْ قَبْلُ وَلَوْ رُدُّوا لَعَادُوا لِمَانُهُواعَنْهُ وَإِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ (٢٨) الانعام)يعني که ته وويني اي محمده(کافران) هغه وخت چې ودرول سي پر اور باندي نو وه به وايي دوی کاشکي زموږ رديدای(ودنياته)اوموږ به تکذيب نه کولای داياتو درب زموږ او وای به موږ له مؤمنانوڅخه بلکاره سو دوی ته هغه چې دوی وو چې پټول ئې مخکي او که دوی رد کړل سي دنياته هم به را وګرزي خامخا وهغه (کفر اومعاصي و) ته چې دوی منعه کړل سوي وو له هغه څخه او بيشکه دوی دی له دروغجنو څخه

وقوف د دوی پر اور باندي موجود نده في الحال ليکن موجوديږي په اخرة كي الله تعالى علم لري د دوی پر وقوف باندي اوس هم. او رجوع د دوی ودنيا ته پرمخ نه موجوديږي خو بيا هم الله تعالى علم لرى پر دي باندي چې که چيري رجوع موجوده سي نو بيرته به راوګرزي هغه کفر ته چې مخکي ئې کوی

(وَيعلم الله الْمَوْجُودفِي حَال وجو الخ)يعني الله تعالى علم لري پرموجود باندي په حال كي دوجود ورسته تردې چې دمعدوميت په حال کي ئې دمعدوم په صفت پيژندی

(وَيعلم انه كَيفَ يكون فناؤه)يعني الله تعالى علم لري پر دې چې څنګه به وي فناء کيدل دهغه کله چې اراده وکړي دنيستي کولو دهغه ورسته ترهغه چې معلوم وو الله تعالى ته دموجوديت په وخت كي دموجود په صفت

(وَعلم الله القَائم فِي حَال قِيَامه قَائمًا)يعني الله تعالى علم لري پر ولاړ باندي دولاړي په حال كي دولاړي علم امام اعظم رحمه الله تعالى ولاړه په طريقه دتمثيل ذكر كري ده ځكه چي الله جل جلاله دټولو احوالو په اعتبارور باندي علم لري

(وَإذا قعد فقد علمه قَاعِدا فِي حَال قعوده)يعني چي كله كښيني نو الله ورباندي علم لري دناستي په حال كي دناستي ورسته تر دي چي الله تعالى معلوم وو چي كښيني به

(من غيران يتَغَيَّرعلمه اَوْيحدث لَهُ علم)يعني بيله دي چي تغيردي راسي په علم كي دده او يادي حاصل سي دته نوى علم چي مخكي نه ووځكه علم دالله تعالى صفت ازليه ده منزه ده له علامودحدوث څخه چي تغيراو تبديل ده او نه الله تعالى ته نوى علم حاصليږي په سبب دتبدل دحالاتو دمخلوق نو علم دالله تعالى باقي ده له ازله تر ابده بيله تغير او تبديل څخه

(وَلَكِن التَّغَيُّر وَالِاخْتِلَاف يحدث عِنْد المخلوقين) يعني تغير او اختلاف داحوالو لكه ناسته او ولاړه حركات اوسكنات نوي پيداكيږي په مخلوق كي او دمخلوق صفات دي البته متعلقات دعلم دالله جل جلاله دي خو له تغير اوتبديل دمتعلقاتو تغير اوتبديل په علم كي د الله جل جلاله نه راځي

خلق الله تَعَالَى الخلق سليما من الْكفْر وَالْإِيمَان ثمَّ خاطبهم وامرهم ونهاهم فكفر من كفر بِفِعْلِهِ وإنكاره وجحوده الْحق بخذلان الله تَعَالَى إِيَّاه وآمن من آمن بِفِعْلِهِ وَإِقْرَاره وتصديقه بتَوْفِيق الله تَعَالَى إِيَّاه ونصرته لَهُ

پيداكړي دي الله تعالى ټول خلك سالم له كفره او ايمان څخه بيايې خطاب وكړ ودوى ته او امر ئې وكړ ودوى ته او منعه ئې كړو دوى نو كافر سو هغه څوک چې كافرسو په خپل فعل سره او په انكار دده له حقه څخه په خذلان دالله تعالى دلره او ايمان راوړى هغه چا چې ايمان ئې راوړى په خپل فعل او اقرار او تصديق سره په توفيق او كومک دالله جل جلاله دلره

## تشريح

(خلق الله تَعَالَى الخلق سليما من الْكفْر وَالْإِيمَان)يعني الله جل جلاله پيدا كړي دي ټول انسانان او پيريان خالي له ايمان او كفر كسي څخه په دې معنى چې الله جل جلاله ايښى ده په هرانسان كي طاقت د ايمان راوړلو او كفركولو مطلب داچې دوى ددې قابليت او صلاحيت لري چې ايمان راوړي اويا كفر وكړي خو دا انسان ده چې مختاره كوي يوه لار پر بله باندې په خپل قدرت كاسبه سره (هُوَ الَّذِي خَلَقَكُمْ فَمِنْكُمْ كَافِرٌ وَمِنْكُمْ مُؤْمِنٌ) يعني خداى هغه ذات ده چې تاسې ئې پيداكړي ياست نو بعضې له تاسو څخه كافران دي او بعضې مؤمنان

(ثمَّ خاطبهم وامرهم ونهاهم)يعني بيا الله تعالى خطاب وكړ ودوى ته دانبياء عليهم السلام په ژبه هغه وخت چې دوى ئې مكلف كړل په عبادت سره او امر ئې كړل دوى په ايمان او اطاعة سره او منعه ئې كړل له كفره او معصية څخه

(فكفر من كفر بِفِعْلِهِ وإنكاره وجحوده الحق)جحود انكار ده له يوشي سره له علمه پرهغه توجهي دعناد نو عطف نې پر انكار عطف دخاص پرعام ده يعني كافران سو هغه چې كافران سو په خپل كسب انكار جحود سره مجبور شوي نه دي پركفر باندې دالله تعالى له طرفه، په دې قول كې دامام اعظم رحمه الله تعالى رد ده پر جبريه و باندې همداسې اثبات داختيار وبنده ته په كفر اوايمان كې آو اشاره ده ودېته چې كفر او ايمان لازم ندي له ذات او ماهية سره بلكه عارضي دي

(بخذلان الله تَعَالَى إِيَّاه)يعني دوى كافران سو په سبب ددې چې الله تعالى ونكړ نصرت ددوى بلكه الله تعالى دوى او د دوى اختيار سره پرېښول او دا مقتضى دعدل دالله جل جلاله ده لكه چې الله تعالى فرمايي (إِنَّ اللَّهَ لَا يَظْلِمُ النَّاسَ شَيْئًا وَلَكِنَّ النَّاسَ أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ (٤٤)يونس

يعني بېشكه چې الله جل جلاله ظلم نكوي پر خلكو دهيڅ شي خو خپله خلك دي چې پرخپلو خانو ظلم كوي

نو دايمان پرېښول او دكفر قبلول له كسبه څخه دبندګانو دي په همدې خاطر دوى مستحق ګرزي دعذاب

(وآمن من آمن بِفِعْلِهِ وَإِقْرَاره وتصديقه)يعني ايمان ئې راوړى په خپل فعل سره او په خپل اقرار دژبې او باور دزړه سره چې دده په اختيار كې دي مجبورسوى نده پر ايمان راوړلو باندې دالله جل جلاله له طرفه

(بِتَوْفِيق الله تَعَالَى إِيَّاه ونصرته لَهُ)توفيق عبارت ده له دې څخه چې بنده مختاره كړي هغه كار چې الله جل جلاله ئې فيصله اوتقدير كړى وي دهغه كه خير وي او كه شر لېكن په عرف اوعادت كې توفيق خاص سوى ده په خير پورې لكه چې الحاد په لغت كې مطلقي ميل ته ويل كيږي خوبيا خاص سوى ده په ميل سره وباطل ته

مطلب داده چې ايمان راوړی هغه چې ايمان نې راوړی په سبب ددې چې موافقه سوه اراده دده له قضاء اوتقدير سره دالله جل جلاله او دا دالله تعالى كرم اوفضل ده پرخپل بنده باندې لكه چې فرمايلي دي الله تعالى خپل كتاب كي (إِنَّ اللَّهَ لَذُوفَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلَكِنَّ أَكْثَرَالنَّاسِ لَايَشْكُرُونَ (۲٤۳) البقرة.يعني بېشكه الله جل جلاله خاوند دفضل اومهربانی ده پرخلكو باندې ليكن ډيرخلكو شكر نه اداكوي

أخرج ذُرِيَّة آدم من صلبه على صور الذر فجعلهم عقلاء فخاطبهم وَأمرهم بِالْإِيمَان ونهاهم عَن الْكفْر فأقروا لَهُ بالربوبية فَكَانَ ذَلِك مِنْهُم إِيمَانًا فهم يولدون على تِلْكَ الْفطْرَة وَمن كفر بعد ذَلِك فقد بدل وَغير وَمن آمن وَصدق فقد ثَبت عَلَيْهِ وداوم

راوويستل الله جل جلاله اولاددادم عليه السلام له ملادده پرصورت دمږيتنو بيائي وګرزول عاقلان نوخطاب ئې وکو هغوی ته او امر ئې وکو هغوی ته په ايمان راوړلو او منعه ئې کو له کفره نو اقرار وکو دوی الله لره په ربوبيت اوسو دغه اقرار له دوی څخه ايمان او دوی پيداکيږي پر دغه فطرت باندي نو که چاکفر وکړ ورسته تر دي بس هغه بدل کړی خپل ايمان فطري او تغير ئې وَر وَسئ هغه ته اوکه چا ايمان راوړی اوتصديق ئې وکو نو ثابت سو هغه پرخپل ايمان فطري باندي او دوام ئې وکو هغه باندي

## د اخذ الميثاق تحقيق

(أخرج ذُرِيَّة آدم من صلبه على صور الذر)يعني را وښيستل الله جل جلاله اولاد دادم عليه السلام طبقي طبقي پر هغه ترتيب چې دوی پيدا کيږي او ښکاره کيږي په دنيا کي تر اخره دزماني له ملا دادم عليه السلام اول وار بيائي له ملاګانو دزامنو او له سينو دلونو دده پرصورت دکوچنو مږ يتنو

(فجعلهم عقلاء فخاطبهم وَأمرهمْ بِالْإِيمَان ونهاهم عَن الْكفْر فأقروا لَهُ بالربوبية) يعني بيا وګرزوی الله جل جلاله عقل په دي ذراتو کي اوخطاب ئې وکړ ودوی ته په دي قول سره اَلَستُ بربكم (ايا زه ستاسو رب نه يم) او امرئې کړل په ايمان راوړلو او منعه ئې کړل له کفرکولو اونافرماني کولو نو دوی تولو اقرار وکو الله جل جلاله لره په ربوبيت او خپلو ځانو لره په عبوديت اوبندګی سره په دي قول بلى يعني هو ته زموږ رب يې او موږ دي بند ګانو يو

(فكَانَ ذَلِك مِنْهم إِيمَانًافهم يولدون على تِلْكَ الْفطْرَة)فطرةپه لغت كي خلقة پيدايښت ته ويل كيږي نامداره سو دغه ايمان په فطرة سره خكه دوى پيدا سوي دي پر دې ايمان باندي يعني سو دغه اقرار د اولاد په ربوبيت دالله تعالى ايمان له دوى څخه نو دوى پيدا كيږي پر دغه ايمان فطري باندي لكه چې اخبار كړى ده الله تعالى لدې څخه په دي قول (فِطْرَتَ اللَّهِ الَّتِي فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا) الروم)يعني پيدايښت دالله جل جلاله هغه چې پيدا كړي دي الله تعالى خلك هغه باندي

او اخبار كړى له دي فطرت څخه نبي عليه السلام په دې قول كي (كُلُّ مَوْلُودٍ يُولَدُ عَلَى الْفِطْرَةِ فَأَبَوَاهُ يُهَوِّدَانِهِ وَيُنَصِّرَانِهِ وَيُمَجِّسَانِهِ)يعني هركوچنى پيداكيږي پر فطرت داسلام باندي خوبيائې مور اوپلار يهودي كړي دى اويائې نصراني كړي او يائې مجوسي كړي

حاصل داده چې اخستل دميثاق تينګي وعدي له اولاد څخه دادم عليه السلام په عالم ارواح كي ثابت ده په قران سره(وَإِذْأَخَذَرَبُّكَ مِنْ بَنِي آدَمَ مِنْ ظُهُورِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ وَأَشْهَدَهُمْ عَلَى أَنْفُسِهِمْ أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالُوا بَلَى) الاعراف يعني ياد كړه هغه وخت چې پيداكړل رب ستا له بني ادم له شاكانو د هغوى اولاد ددوى او شاهدان ئې كړل دوى پرخپلو ځانو باندي او وې ويل ايا زه ستاسو رب نه يم دوى وويل هو ته زموږ رب يې

اوپه هغه حديث سره هم ثابت ده چې روايت يې كړى حاكم په مستدرك كي له ابن عباس رضي الله تعالى عنهما څخه) قال اخذ الله الميثاق من ظهر أدم عليه الصلوة والسلام بنعمان يعنى بعرفة فاخرج من صلبه كل ذرية ذرأها فنثرهم بين يديه كالذرثم كلمهم قبلا وقال الست بربكم قالوا بلى) يعني ويلي دي نبي عليه السلام چې واخيسته الله تعالى تينګه وعده له شا دادم عليه السلام په نعمان كي راونيستل له ملا دده څخه ټول هغه اولاد چې پيدا كړي دي الله

تعالى بيا ئې څواره واره کړل په مخکې دده لکه مېرېان بيا ئې خبرې وکړې له دوى سره ښکاره او وې ويل دوى ته ايازه ستاسو رب نه يم دوى وويل هو ته زموږ رب يې

معتزله اوبعضې علماء له اهل سنتو وايي چې پورته ايت له بابه دتمثيل څخه ده په دې معنى چې الله جل جلاله دروليې دي خلكو لره دلائل پرتوحيد اوربوبيت خپل باندي گواهي ورکوي پر دې باندي د دوى عقلونه او گرزولې دي الله تعالى دا خلک داسي چې امتياز او جلا والى را وستاي سي ترمنځ دهداية اوضلالة نو گواكي الله جل جلاله دوى شاهدان کړل پرخپلو ځانو باندي او وي ويل دوى ته الست بربکم گواكي دوى وويل بلى

ملاعلي قاري رحمه الله تعالى وايي كه دچا سره دا پوښتنه پيداسي چې په دغه ايت سره دحجت الزام څنګه ممكن ده په داسي حال کي چې زموږ دغه وعده پياد نده كه هرڅومره كوشش هم وكړو؟جواب ئې داده چې دغه وعده الله تعالى موږ ته راهبره کړي ده دامتحان په خاطر ځکه دنيا دامتحان دار ده لازم ده پرموږباندي ايمان راوړل په غيبو باندي او كه زموږ يادە سي دغه وعده نو امتحان به هم ولاړسي او نه به موږ حاجت پيداکو وتذکير ته دانبياء عليهم السلام او داسي هم نده چې يوشى هېرسي له يو چا څخه نوبيا دې حجت ختم سي په هغه سره او ثابت دي سي عذر

دا قول دامام اعظم رحمه الله تعالى دليل ده پر دې باندي چې كوچنيان د کافرانو مؤمنان دي په ايمان فطري سره پاته سوه داخبره چې دغه ايمان كافي ده لپاره ددې چې دوى داخل سي جنت ته كه مړه سي مخکي تربلوغ او كه با دي كي توقف کړى امام اعظم رحمه الله تعالى

(ومن كفر بعد ذلك فقد بدل وغير)يعني كه څوک کافر سو ورسته تر دغه وعدي چې له ده څخه واخستل سوه په عالم ارواح کي نو ده بدل کو خپل ایمان فطري په کفر کسبي باندي

(ومن آمن وصدق فقد ثبت عليه وداوم)يعني هغه څوک چې ښکاره کړي ایمان په دې عالم جسماني کي او بوخای کړي ایمان لساني له تصديقي قلبي سره په دې معنی چې خوله او زړه ئې سره موافق وي نودی ثابت سو پرخپله کړي وعده باندي اودوام ئې وکړ پر هغي باندي په سبب دهدايت دالله تعالی له طرفه

وَلم يجْبرأحدا من خلقه على الْكفْر وَلَاعلى الْإِيمَان وَلَاخلقه مُؤمنا وَلَا كَافِرًا وَلَكِن خلقهمْ أشخاصا وَالْإِيمَان وَالْكفْرفعل الْعباد وَيعلم الله تَعَالَى من يكفر فِي حَال كفره كَافِرًا فَإِذا آمن بعد ذَلِك علمه مُؤمنا فِي حَال إيمَانه من غير أن يَتَغَيَّر علمه وَصفته

---

او الله تعالى نده مجبوره كړى هيڅوک له خپل مخلوق څخه پر كفرباندي او نه پر ايمان باندي او نه الله تعالى پيداكړى ده داسي چي مؤمن وي او ياكافر بلكه الله تعالى دوى پيدا كړي دي اشخاص(ذوات) ايمان او كفر فعل دبندګانو ده او علم لري الله تعالى پر هغه چا چي كافروي په حال كي دكفر دهغه دكافر په صفت كله چي ايمان راوړي ورسته تر دې بيا علم لري دباندي دمؤمن په حال كي دايمان دهغه ببله دې چي تغير دې راسي په علم كي دالله تعالى او په صفت كي دده

## تشريح

(وَلم يجْبرأحدا من خلقه على الْكفْر وَلَاعلى الْإِيمَان)يعني الله تعالى نه دي پيدا كړي ايمان اوكفر په زره كي دبنده په طريقه دجبر اوغلبي بلكه الله تعالى پيداكړي دي ايمان او كفر په زړه كي دبنده په داسي طريقه چي اختيار دبنده او كسب دده هم ورسره مقارن او يوځاى وي څكه مكره اومجبور هغه څوک ده چي مجبور كړل سي پر يو كار باندي او هغه كار كوي ليكن په زړه كي ئې بد بولي هغه كار او دلته داسي نده څكه ايمان دمؤمن په رضا محبت اختيار سره دده دي همداسي كفر دكافر .

په دي قول كي رد ده پرجبريه و باندي او اثبات ده دمذهب داهل سنتو چي بنده مختار ده په خپلو افعالوكي مجبور نده هر كله چي بنده مختاره كړي ايمان اوياكفر نوالله جل جلاله پيداكوي دغه ايمان اويا كفر په دې بنده كي

ورسته تر اختيار دده ببله دي چي مجبور كړل سي

(وَلَاخلقه مُؤمناوَلَا كَافِرًا)يعني الله تعالى هيڅوک داسي نده پيداكړی چي موصوف دي وي په ايمان كسي سره اويا په كفر ي كسي سره فرق ددې جملي او مخكنۍ جملي په دې كي ده چي اوله جمله افاده كوي داخبره چي انسانان پيدا سوي دي په ابتداء كي خالي له ايمان اوكفر څخه مجبوره سوي ندي پر ايمان راوړلو اوكفر كولو باندي ورسته تر پيدا ېښت اوداجمله افاده كوي داخبره چي داسي نده چي انسان دي تلبس ولري له ايمان اويا كفر سره په وخت كي دولادت نو په اولنۍ جمله كي مقصود ده نفی داجبار او تثبيت د اختيار وبنده ته او په ورستنۍ جمله كي نفی ددې خبري چي يوڅوک دي مطبوع او مفطور وي پركفر او ياايمان باندي

(وَلَكِن خلقهمْ أشخاصا)يعني بلكه الله تعالى دوی پيداكړي دي داسي چي دوی كي دا استعداد او صلاحيت سته چي ايمان راوړي په خپل اختيار او اخلاص سره او يا كفر وكړي په دې گمان چي موږ به خلاص سو

(وَالْإِيمَان وَالْكفْرفعل الْعباد)يعني ايمان كفر عبادت معصيت كسب دبندگانو ده په طريقه داختيار نه په طريقه داجبار او اضطرار سره

(وَيعلم الله تَعَالَى من يكفر فِي حَال كفره كَافِرًا الخ)يعني الله تعالى علم لري پر كافراوپېژني ئې په حال كي دكفردكافرپه صفت اوبدني ايسي لكه چي همداسي راغلي په بوه نسخه كي وابغضه اوچي كله ايمان راوړي ورسته تر كفر نوبيائې پېژني دمؤمن په صفت او ورسره محبت كوي لكه په بوه نسخه كي راغلي دي واحبه

(من غير أن يَتَغَيَّر علمه وَصفته)يعني ببله دي چي تغير دي راسي په علم كي دالله تعالى او په صفت كي درضاء اوغضب دده په سبب دتغير داحوالو دبنده چي ايمان او كفر دي څكه هرمتغير حادث وي او الله تعالى پاک ده لدې چي محل دحوادثلو دي سي

وَجَمِيع أفعَال الْعباد من الْحَرَكَة والسكون كسبهم على الْحَقِيقَة وَالله تَعَالَى خَالِقهَا وَهِي كلهَا بمشيئته وَعلمه وقضائه وَقدره

اوټول افعال دبندګانو لکه حرکت اوسکون کسب د دوی ده په حقیقت کې او الله تعالی پیدا کونکی ده ددې افعالو او دا افعال دبندګانو ټول په اراده دالله تعالی سره دي او په علم فیصله تقدیر دده سره دي

## تشريح

(وَجَمِيع أفعَال الْعبادمن الْحَرَكَة والسكون)یعني ټول هغه افعال چې صادرېږي له بندګانو څخه په اختیار لکه حرکت اوسکون کفر ایمان اطاعت معصیت نه هغه افعال چې صادرېږي ببله اختیاره دده لکه لوړه تنده سور والی دخجل او ژړ والی دخوف او داسي نور

(كسبهم على الْحَقِيقَة)یعني د دوی کسب ده په طریقه دحقیقت داسي نده چې مجازا ئې دوی ته نسبت کېږي او نه هم دجبر او اکراه په طریقه دي بلکه دوی اختیار لري په خپلو افعالو کې. داسي نده لکه معتزله چې وایي بنده خالق ده دخپلو افعالو اختیاریه و او دوی کفر او معاصي په تقدیر دالله تعالی نه بولي او نه هم دامي ده لکه جبریه چې وایي بیخي انسان لره اراده نسته بلکه اعمال دانسان داسي دي لکه حرکات دجماداتو پر دواړو دلو باندي رد کېږي په دې قول دالله تعالی(إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ(٥)څکه نسبت دعبادت ونفسو ته دبندګانو تقاضاکوي ددي چې بندګانو لره يو نوعه داختیار اوقدرت سته او طلب دمعونت په دې عبادت کې په دې اعتبار ده چې بندګان مستقل ندي په کسب کې دخپلو افعالو ببله کومک دالله تعالی په پیداکولو دافعالو دوی

دکسب او خلق فرق داده چې کسب هغه ده چې په هغه کې کاسب مستقل نوي او په خلق کې خالق مستقل وي او بعضي علماء وایي چې که په الا

سره وو هغه کسب ده او که پرته له کومي آلې پیداکیدی هغه خلق ده او په خینو شرحوکي راځي چې کسب تعلق دارادي دبنده اودقدرت دده تر فعل پوري مثلا حرکت دبنده په دې اعتبار چې منسوب سي وارادي او قدرت دبنده ته نو مکسوب بلل کیږي او په دې اعتبار چې منسوب سي وقدرت اوارادي ته دالله تعالی بیامخلوق ورته ویل کیږي. هغه افعال چې الله جل جلاله پیداکړي وي ببله دې څخه چې له قدرت او ارادي سره دالله تعالی قدرت او اراده دبنده هم یوځای سي هغه صفات دبنده بلل کیږي اوفعل دبنده نده لکه حرکت دهغه اندامو چې بې اختیاره ربږدي

اوهغه افعال چې الله تعالی پیداکړي وي خو له قدرت سره دالله تعالی قدرت دبنده هم ملګری وي هغه دبنده لپاره فعل صفت کسب بلل کیږي لکه افعال اختیاریه

(وَاللهُ تَعَالَى خَالِقُهَا)یعني الله جل جلاله پیداکوونکی ده ددې افعالو موافق له خپلې ارادي سره دلالت کوي دې باندي داقول دالله تعالی(اللَّهُ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ) الزمر ) څکه فعل دبنده هم یوشی ده له شیانو څخه (وَاللَّهُ خَلَقَكُمْ وَمَا تَعْمَلُونَ (۹٦)الصافات)یعني الله تعالی تاسو پیداکړي یاست اوهغه اعمال چې تاسو ئې کوي امام نسفي رحمه الله تعالی وایي دا زموږ دلیل ده پر معتزله و باندي

همداسي دلالت کوي دې باندي دا خبره چې که چیري بنده دخپلو افعالو خالق وای نو پرتولو باندي به ئې تفصیلي علم درلودای. حضرت علی رضي الله تعالی عنه به ویل عرفت الله بفسخ العزائم یعني ماوپیژندی الله تعالی په فسخه کولو دارادو او قصدو د بندګانو .

معتزله دليل وايي پر خپله خبره باندي په دې سره چې كه چيري الله تعالى خالق سي دافعال د بندګانو نو الله جل جلاله به موصوف سي په خوراک څښاک ناسته ولاړه سره او داسي نور نعوذ بالله من ذلک جواب ئې داده چې موصوف په فعل سره هغه څوک ده چې فعل په ده پوري ودريږي نه هغه څوک چې تخليق ئې وکړي مثلا تور والى دهغه چا صفت ده چې تور والى پوري ولاړ وي نه دهغه چا چې تور والى ئې بيداکړي وي

(وَهِيَ كلهَا بمشيئته وَعلمه وقضائه وَقدره)يعني تول افعال دبندګانو كه خيروي كه شر وي كه څه هم دبندګانو كسب ده خو په اراده سره دالله تعالى تر سره كيږي دده علم تعلق پوري لري دده دفيصلې اوتقدير سره موافق تر سره كيږي حديث كي راځي ني عليه السلام وايي هرشي په تقدير سره دالله تعالى ده حتى عجز(كمزوري) او كيس(هوشياري) هم دالله تعالى په تقدير دي

والطاعات كلها كَانت وَاجِبَة بِأَمرالله تَعَالَى وبمحبته وبرضائه وَعلمه ومشيئته وقضائه وَتَقْدِيره والمعاصي كلهَا بِعِلْمِهِ وقضائه وَتَقْدِيره ومشيئته لَا بمحبته وَلَا برضائه وَلَا بِأَمْرِه

اوطاعات ټول واجب دي په امر سره دالله تعالى او په خوښه دده اوپه رضاء دده او په علم دده او په اراده دده او په فيصله دده او په تقدير سره دده اوګناوي ټولي دالله تعالى په علم او په فيصله دده اوپه تقدير دده اوپه اراده سره دده دي نه په خوښه دده او نه په رضاء دده اونه په امر سره دده دي

تشريح

(والطاعات كلهَا كَانَت وَاجِبَة بِأَمرالله تَعَالَى)يعني عبادات ټول كه واجب وي كه مستحب كه لږ وي كه ډير ثابت دي په امر دالله تعالى لكه چې فرمايي (وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ)الانفال)يعني اطاعت وكړئ دالله تعالى او دهغه درسول

(وبمحبته)يعني په خوښه دالله تعالى دي لكه فرمايي(فَإِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِينَ (٧٦) ال عمران)يعني ببشكه الله تعالى محبت لري له متقيانوانسانانو سره .

(وبرضائه)يعني په رضاء سره دالله تعالى ترسره كيږي لكه وايي په حق كي دمؤمنانو (رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ)التوبة)يعني الله جل جلاله له دوى څخه راضي ده او دوى له الله تعالى څخه راضي دي

(وَعلمه ومشيئته وقضائه وَتَقْدِيره)يعني دالله جل جلاله دعلم په تعلق او دده په اراده اوفيصله سره ترسره كيږي او دده په هغه تقدير سره تر سره كيږي چي اول وار ئې اندازه كړي وو بيائې په لوح محفوظ كي ليكلي وو او دريم وار ئې په عالم كون كي ښكاره كړل او څلورم وار به الله جل جلاله پوره بدله وركړي په عقبى كي

(والمعاصي كلها بعلمه وقضائه وتقديره ومشيئته)يعني كناهونه تول كه واړه وي اوكه لوى دالله جل جلاله په علم فيصله تقدير اراده سره دي خكه كه الله تعالى اراده ونكري هيڅكله به واقع نسي

(لا بمحبته)يعني كناوي دالله جل جلاله په محبت سره ندي چي الله تعالى ورسره محبت ولري لكه چي فرمايي(فَإِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْكَافِرِينَ (٣٢)ال عمران_ يعني ببشكه الله تعالى محبت نلري له كافرانو سره

(ولا برضائه)يعني معاصي په رضاء سره دالله تعالى ندي بلكه الله جل جلاله ناراضه كيږي په كناه سره لكه چي وايي الله تعالى(وَلَا يَرْضَى لِعِبَادِهِ الْكُفْرَ) الزمر-يعني الله تعالى راضي نده په كفر دخپلو بندكانو

(ولا بأمره)يعني كناوي په امر سره دالله تعالى ندي لكه چي فرمايي(قُلْ إِنَّ اللَّهَ لَا يَأْمُرُ بِالْفَحْشَاءِ) الاعراف_ يعني ورته ووايه اي محمده چي ببشكه الله جل جلاله امر نكوي په بدو كاروسره

امام اعظم رحمه الله تعالى په كتاب الوصيةكي وايي موږ اقرار كوو په دې سره چي اعمال درې قسمه دي ١فريضة يعني فرائض كه عملي فرض وي اوكه اعتقادي اوعملي دواړه) ٢فضيلة يعني سنت نفل مستحب) ٣معصية يعني حرام مكروه) اول قسم چي فرائض دي په امر اراده محبت رضاء تقدير تخليق قضاء حكم علم توفيق سره دالله تعالى دي اوپه كتابة دده سره په لوح محفوظ كي او دوهم قسم په امر قطعي سره دالله تعالى ندي ليكن په اراده محبت قضاء رضاء تقدير علم توفيق تخليق سره دالله تعالى دي او په كتابة سره دده په لوح محفوظ كي او دريم قسم په امر دالله تعالى ندي خو په اراده دالله تعالى دي خو نه په محبت دده په قضاء دالله تعالى دي خو نه په رضاء دده سره په تقدير تخليق سره دالله تعالى دي خو نه په توفيق سره دده بلكه په خذلان سره دالله تعالى دي په علم سره د الله جل جلاله دي

همداسي په كتابة سره دده په لوح محفوظ كي .

مطلب دا چي هغه نيک اعمال چي دنياكي دمدحي اوستايلو ور وي اوپه اخرت كي ثواب ور باندي مرتب وي هغه دالله تعالى په رضاء اراده قضاء سره دي او هغه قبيح اعمال چي په دنياكي دذم ورري او په اخرت كي ني فاعل مستحق كرزي دعذاب هغه په رضاء د الله جل جلاله سره ندي نو اراده قضاء تقدير دټولو سره تعلق لري او رضاء محبت امر يوازي دنيكو اعمالو سره تعلق لري

والأنبياء عليهم الصلاة والسلام كلهم منزهون عن الصغائر والكبائر والكفر والقبائح وقد كانت منهم زلات وخطايا

او انبياء علیهم السلام ټول پاک دي له ورو اوغټو ګناوو څخه او له کفره او له بدو څخه او وو له څينو د دوی څخه زلات اوخطاوي

## دانبياءعليهم السلام دعصمت مسئله

په شرح العقائد کي راځي چي انبياء علیهم السلام ټول له درواغ ويلو څخه پاک دي په خاصه توګه بيا په هغه امورو کي چي هغه دشريعت داحکامو دتبليغ او دامت دلارښوونې سره تعلق لري . له قصدا درواغ ويلو څخه خو په اتفاق دټول امت معصوم دي اوله سهوا درواغ ويلو څخه هم په نزد د ډيرو معصوم دي

دامسئله چي نبيان له ټولو ګناوو څخه پاک دي يوڅه تفصيل لري هغه دامي چي دټول امت په اتفاق سره له کفره څخه معصوم دي مخکي تر نبوت او هم ورسته تر نبوت او دجمهور اهل السنة والجماعة په نبز له هغه کبائرو ګناوو څخه هم معصوم دي چي په قصد سره وي البته په دي کي اختلاف سته دحشويه(يوه ډله ده) اوسهوا ګناه کبيره چي ده جمهور قول کوي په جواز ددي او صغائر وري ګناوي قصدا بيا په نبز دجمهور علما وو کيداسي خو په دي کي اختلاف دجبائي او دده داتباعو سته

او په سهوه سره دصغيري ارتکاب جائزده په اتفاق بغير له هغي صغيري چي دمرتکب پر سپکوالي دلالت کوي لکه يوې کوله ډوډۍ غلاکول او يا ديوې داني او دوو دانو په اندازه په تول او ترازو کي چم کول خو دمحققينو په نبز داټول په دي شرط چي که چيري دوی اګاه کړل سي نو دسمي ئې پرېږدي يعني په سهوه سره وي

داتول تفصيل دهغه څه په اړه ده چې ورسته تر وحي وي اومخکي تر وحي دامي څه نسته چې ده کبیرې پر نه کولو اونه ارتکاب باندي دلالت وکړي البته په دې کي اختلاف دمعتزله و سته څکه دوی وايي چې له نبي څخه مخکي ترنبوت او ورسته ترنبوت دهيڅ ډول گناه ارتکاب ممکن نده که صغيره وي اوکه کبيره خو معتزله خپله دخان ساتلو په خاطر دکفر ښکاره کول هم جائز بولي

هغه شيان چي له انبياءعليهم السلام څخه په صحيح طروقو سره نقل سوي دي اوپه ظاهره کذب اويا معصيت معلوميږي هغه بايد تر کومه حده چي ممکن وي له ظاهر څخه واړول سي اويا پر ترک داولى باندي حمل سي اويا تر وحي مخکي وبلل سي

ابن همام رحمه الله تعالى وايي چي دجمهوراهل السنة والجماعة په نبز نبيان له کبائرو څخه معصوم دي خو له هغه صغائرو څخه چي سهوا وي اويا خطاءً معصوم ندي او له اهل السنة والجماعة څخه خيني علماء داسي هم دي چي سهوا ئې هم منعه بولي ليکن صحيح رايه داده چي سهوا ممکن ده .

خلاصه داسوه چي په ټول اهل السنة والجماعة کي هيڅوک داسي نسته چي ددې قائل وي چي انبياء عليهم السلام په قصد سره ديو منع سوي عمل ارتکاب کوي البته په سهوه اوخطاء سره کيدايسي هغه ته زلة وايي (والأنبياء عَلَيهم الصَّلَاة وَالسَّلَام كلهم)يعني انبياء عليهم السلام ټول که هغه مشهور نبيان دي اوکه نور چي اول ئې ادم عليه السلام ده او اخر ئې نبي عليه السلام ده

دنبي عليه السلام څخه په باره کي دشمار دانبياء عليهم السلام پوښتنه وسوه نبي عليه السلام ورته ووېل يو لک څلورويشت زره دي په بل روايت کي دي

دوه لکه څلورويښت زره دي ليکن بهتره داده چي پربو معين عدد باندي اقتصار ونسي

(منزهون عَن الصَّغَائِرِ والکبائر وَالْکفر )يعني پاک اومعصوم دي له ورو ګناوو څخه او له لويو ګناووڅخه همداسي معصوم دي له کفره څخه تخصيص دکفر ئي په دي خاطر وکړ چي په تولو غتو ګناوو کي غته اولويه ګناه کفر ده چي بيخي بخښل کيږي نه لکه الله تعالى فرمايي(إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَ يَغْفِرُ مَا دُونَ ذَلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ) النساء

يعني بېشکه الله جل جلاله نه بخښي دا چي شريک ونيول مي له دسره او بخښي هغه ګناوي چي کښته دي ترشرک هغه چا لره چي اراده ئي وکړي دبخښي هغه لره

(والقبائح)يعني پاک دي له قبائحو اوبدو کاروڅخه په يوه نسخه کي دلته لفظ دفواحش راغلى ده فواحش خاص دي ترکبائرو څکه فواحش يو څو مخصوصي ګناوي دي لکه قتل غلا زنا لواطت پرپاکو ښځو تهمت وېل سحر په جهاد کي له ميدان څخه تيښته کول چوغلي کول دسود مال خوړل ديتيم مال خوړل ظلم کول په مځکه کي شر اوفساد خپرول

## دکبائرو ګناء عدد

سعيد ابن جبير رضي الله تعالى عنه وايي يوسړي پوښتنه وکړه له عبد الله ابن عباس رضي الله تعالى عنهما ددي چي کبائر يعني غټي ګناوي څو دي ابا اوه[٢] دي هغه مبارک ورته ووېل تر اوه سوه[٧٠٠] پوري دي څو په استغفار سره ګناه کبيره نه پاته کيږي اوصغيره بيا په هميشه توب سره صغيره نه پاته کيږي بلکه په لويه ګناه بدليږي

## دګناه کبیری تعریف

دګناه کبیري په تعریف کې دعلماء اختلاف سته ابن سرین رضي الله تعالی عنه وایي هره ګناه چې الله جل جلاله منع ځنې کړې وي هغه کبیره ګناه ده حسن بصري سعید بن جبیر اوضحاک او داسې نورعلماء وایي چې هره ګناه چې په قران کې دوعید سره ذکرسوی وي(یعني پرکولوني وعده دعذاب کړل سوي وي)هغه ګناه کبیره ده ملاعلي قاري رحمه الله تعالی وایي داقول اظهر ده

(وَقدکَانَت مِنْهُم زلات وخطایا)د زلة اوخطا ترمنځ نسبت دعموم خصوص مطلق ده هره خطا زلة ده اوهر زلة خطا نده ځکه زلة کله په خطاسره کله په هیره سره کله په سهوه سره کله په ترک سره د اولی او افضل وي یعني له دوی څخه یوڅه زلات(کوتاهیاني)سوي دي لکه خوراک دادم علیه السلام له ممنوعه درختي څخه په هیره سره اویا په دې وجه چې عمل ئې په عزیمت نه وکړ بلکه په رخصت ئې عمل وکړ په دې ګمان چې ښایي مراد دالله تعالی له درختي څخه دغه معینه درخته وي نه ټول جنس ددې درختي .

مثال دخطا لکه وژل دموسی علیه السلام دیوقبطي سړي په لاس سره ځکه دد مبارک قصد نه وو د وژلو دهغه بلکه دد قصد دفعه دضرر وه له اسرائیلي څخه نو وهل قصدا وو او وژل خطاءً .

وَمُحَمَّد عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَبِيه وَعَبده وَرَسُوله وَصفيه ونقيه وَلم يعبد الصَّنَمَ وَلَم يُشْرِك بِاللهِ تَعَالَى طرفَة عين قطّ وَلم يرتكب صَغِيرَة وَلَا كَبِيرَة قطّ

اومحمد عليه الصلوة والسلام دالله جل جلاله نبي ده اوبنده دده اورسول دده او غوره او مختاره دده او نه ئې ده کړئ هيڅکله عبادت دبت اونه ئې شريک نيولی له الله تعالى سره دسترکو درپ په اندازه هيڅکله اونه مرتکب سوی د وړي اويا لويي گناه هيڅکله

## دنبي عليه السلام دنسب سلسله

(وَمُحَمَّد عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ)يعني محمد بن عبد الله بن عبد المطلب بن هاشم بن عبد مناف بن قصي بن كلابن مرة بن كعب بن لؤي بن غالب بن فهر بن مالك بن النضر بن كنانة بن خزيمة بن مدركة بن الياس بن مضر بن نزار بن معد بن عدنان

تردغه خايه دنبي عليه السلام دنسب په سلسله كي اختلاف نسته څكه دنبي عليه السلام څخه بعضي روايات همداسي رانقل سوي دي

او دنبي عليه السلام دنسب سلسله له عدنان څخه بياتر ادم عليه السلام پوري په خينو كتابو كي دسيرة په همدې دول ذكر سوي ده عدنان بن أدبن أددبن مقوم بن ناحور بن تيرح بن يعرب بن يشجب بن نابت بن إسماعيل بن إبراهيم الخليل صلى الله عليهماوسلم بن آزربن ناحور بن ساروح بن راغو بن فالغ بن عيبر بن شالخ بن أرفخشذ بن سام بن نوح عليه السلام بن لامك بن متوشلخ بن أخنوخ وهو إدريس صلى الله عليه وسلم بن يرد بن مهلاييل بن قينان بن يانش بن شيث بن آدم صلى الله عليه وسلم

(نَبِيه)يعني نبي دالله جل جلاله ده په خينو نسخو كي داسي دي وحبيبه وعبده په حديث كي راځي نبي عليه السلام وفرمايل زه حبيب دالله تعالى يم او زما

سره به ېي بيرغ دحمد په ورځ دقيامت اوتردې بيرغ لاندې به ادم عليه السلام وي

(وَعَبده) په دې لفظ کې دوې فائدې دي يو تشريف دنبي عليه السلام په وصف دعبودية سره لکه چې يوشاعر وايي

لاتدعني الابيا عبدها.............فانه والله اشرف اسمائي

يعني ماته يوازې په اې بنده سره بږغ کوه ځکه زه قسم کوم په الله تعالى چې زماپه ټولو نومانو کې همدا اشرف نوم ده

دوهم ساتل دامت دنبي عليه السلام له مبالغې څخه په مدحه کې دده لکه چې فرمايي څپله نبي عليه السلام (لاَ تُطْرُونِي كَمَا أَطْرَتِ النَّصَارَى ابْنَ مَرْيَمَ فَإِنَّمَا أَنَا عَبْدٌ فَقُولُوا عَبْدُاللهِ وَرَسُولُهُ)يعني مبالغه مه کوئ په مدحه کې زما لکه نصاراو چې به کوله په حق کې دعيسى عليه السلام ځکه زه بنده يم نو تاسو ووایاست چې بنده دالله تعالى ده او رسول دهغه ده

(وَرَسُولُه)په تقديم کې دنبوت پر رسالة اشاره ده ودېته چې نبوت مخکې ده پر رسالة ځکه نبوت له وخت څخه دولادة لا وو همداسې په تقديم کې دعبودية پررسالة باندې

(وَصفيه)يعني غوره اومختاره دالله تعالى حديث کې راځي نبي عليه السلام فرمايي (إن الله اصطفى كنانة من ولد إسماعيل واصطفى قريشا من كنانة واصطفى هاشما من قريش واصطفانى من بنى هاشم)يعني الله جل جلاله مختاره کړو کنانة له اولاد څخه داسماعيل عليه السلام او مختاره ئې کړو له کنانة څخه قريش اومختاره ئې کړو له قريشو څخه بني هاشم اوبيائې مختاره کړم زه له بني هاشمو څخه

(ولقيه)دا لفظ احستل سوی ده له تنقية څخه معنى ئې ده پاکول اومخکنۍ لفظ يعني صفيه بيا اخستل سوی ده له اصطفاء څخه معنى ئې ده غوره

کول نو هغه چي په شروح کي راغلي چي دا دوه لفظه په وزن او معنی کي یوشان دي هغه خبره کمزوري ده

نبي عليه السلام ته نقي دالله تعالی څکه ویل کیږي ولي چي الله جل جلاله پاک کړو زړه دنبي عليه السلام په زمانه کي دکوچني والي له هغي مادي څخه چي منع کوي سړی له پورته کیدو څخه ولوړو مراتبو ته

(وَلَم یعبد الصَّنَمَ وَلَم یُشْرِك بِاللهِ تَعَالَى طرفَةَ عین قطّ)یعني نبي عليه السلام عبادت نده کړئ دبت او دبل شي هيڅکله اونه ئي شريک نيولی له الله تعالی سره په اندازه د رپ دسترګو نه مخکي ترنبوت او نه هم ورسته څکه انبياء عليهم السلام ټول معصوم دي له کفره څخه په اجماع سره له حضرت علي رضي الله تعالى عنه څخه روايت ده (قال قيل للنبی صلی الله عليه وسلم هل عبدت وثنا قط قال لا قالوا فهل شربت خمرا قط قال لا) يعني نبي عليه السلام ته وويل سو ايا تا عبادت کړئ دبت يو وخت ده مبارک وويل يا بيا دوی وويل ايا تا شراب چښلي دي يو وخت ده وويل يا

(وَلَم یرتکب صَغِيرَةَ وَلَا کَبِیرَةَ قطّ)یعني نه مرتکب سوئ ده دیوي کوچنی اویا لويي گناه هيڅکله نه مخکي تر نبوت اونه هم ورسته بلکه الله جل جلاله دی ساتلئ ده له گناوو څخه په خپل فضل سره او څنګه به داسي سي حال دا چي الله تعالی دده توصیف کړئ په دې قول سره(وَإِنَّكَ لَعَلَى خُلُقٍ عَظِيمٍ (٤) القلم) مراد له خلق عظيم څخه پر تفسير دعائشي رضي الله تعالى عنها عمل په قران سره ده هغه څوک چي موصوف په خلق عظيم سره ضرور به معصوم وي له گناوو څخه

دا چي نبي عليه السلام ته الله جل جلاله خطاب کړئ په دي قول سره (عَفَا اللَّهُ عَنكَ لِمَ أَذِنتَ لَهُمْ)(التوبة) يعني الله تعالى دي تاته بخښنه وکړي ولي دي

**مغوته اجازه ورکړه او په مثل ددې نور اياتونه داتول حمل کبېري پر ترک داولی باندي**

وَأفضل النَّاس بَعدَ النبي عَلَيهِ الصَّلَاة وَالسَّلَام أبُوبكر الصّديق ثمَّ عمر بن الخطاب الفَارُوق ثمَّ عُثمَان بن عَفَّان ذُو النورين ثمَّ عَلِيّ بن أبي طَالب المرتضى رضوَان الله عَلَيهِم أجمَعِينَ

اوبهتر دخلكو ورسته ترنبي عليه الصلوة والسلام ابوبكر صديق رضي الله تعالى عنه ده بيا عمربن الخطاب رضي الله تعالى عنه ده بيا عثمان بن عفان ذو النورين رضي الله تعالى عنه ده بيا علي بن ابي طالب المرتضى ده الله جل جلاله دي له ټولو څخه راضي سي

## دخلفاء راشدينو بيان

(وَأفضل النَّاس بَعدَ النبي عَلَيهِ الصَّلَاة وَالسَّلَام)په خينو نسخوكي بعدالنبيين په لفظ دجمع راغلى او دا ډيره ښه نسخه ده ځكه پر دغه موجوده نسخه دا اعتراض وارديږي چي دسيدنا عيسى عليه السلام به نزول كيږي ومخكي ته ورسته ترنبي عليه السلام نو څنكه ابوبكر افضل الناس ده ورسته تر نبي عليه السلام ددې اعتراض جواب كيداى سي په دې سره چي مراد داسي ده چي افضل دخلكو ورسته تر وجود دنبي عليه السلام اوعيسى عليه السلام مخكي ده تر وجود دنبي عليه السلام كه څه هم نزول ئې ورسته ده

(أبُوبكر الصّديق)نوم ئې دجاهليت په زمانه كي عبدالكعبة وو بيا نبي عليه السلام نامداره كړ په عبدالله سره دپلار نوم ئې عثمان بن عامر بن كعب بن سعد بن تيم بن مرة بن كعب بن لؤي بن غالب بن فهر القرشي التيمي كنيه دپلار ئې ابوقحافه وه

ده مبارك ته صديق ويل كيږي دډيرصدق اوربښتينولي په خاطرسره په خينو رواياتو كي راغي چي كله دمعراج واقعه پيښه سوه نو مشركانو دنبي عليه السلام تكذيب وكړ او دوى ولاړو وابوبكر صديق رضي الله تعالى عنه ته او

ورته ونې ويل چې ستا ملګرى داسې او داسې وايي ابوبکرصديق رضي الله تعالى عنه ورته وفرمايل که ئې چيرې داسې ويلي وي نوصادق ده اوبيا خپله راغلى نبي عليه السلام ته نبي عليه السلام ذکر کړه ده ته توله قصه هرکله چې به نبي عليه السلام ذکر کړيو شي نو ده به ورته ويل ته صادق يې هرکله چې خبره پاى ته ورسيده نو ابوبکر وويل اشهد انک لرسول الله حقا نبي عليه السلام وفرمايل اشهد انک صديق حقا

دعتيق په نامه سره هم نامداره سوى ده لکه يو روايت کې راځي له عائشې رضي الله تعالى عنها څخه دامبارکه فرمايي چې دابو قحافه دريې زامن وو عتيق معتق معيتيق

په قران کي الله جل جلاله نامداره کړئ په اتقى سره(وَسَيُجَنَّبُهَا الْأَتْقَى (١٧) الَّذِي يُؤْتِي مَالَهُ يَتَزَكَّى(١٨)الليل امام بغوي رحمه الله تعالى وايي چې مراد له دې څخه ابو بکر صديق ده په اتفاق دمفسرينو

ابوبکرصديق رضي الله تعالى عنه تر تولو مخکنيو او ورستنيو وليانو افضل اوبهتر ده پر همدې باندې اجماع ده او دروافضو اختلاف لره اعتبار نسته. له نبي عليه السلام سره تولو مشاهدو ته حاضر سوى ده.جلاسوى نده له نبي عليه السلام څخه نه دجاهليت په زمانه کې او نه په اسلام کې خپله ابوبکر رضي الله تعالى عنه او دده مور اوپلار او اولاد تول صحابه دي پيداسوى ده په مکه کې تر عام الفيل دوه کاله اوبو څو مياشتې ورسته.تر نبي عليه السلام دوه کاله اويادرې کاله کشر وو.

حقيقت داده چې نبي عليه السلام دى خپل خليفه مقرر کړئ وو په لمانځه کې نو دى په حقه سره اول خليفه ده داسلام روايت سوى له عائشې رضي الله تعالى عنها څخه په صحيح مسلم کې دا مبارکه وايي چې نبي عليه السلام و فرمايل(ادعِي أبا بكر أباك وأخاك حتى أكْتُبَ كِتَابًا فإني أخاف أن يَتَمَنَّى مُتَمَنٍّ

ويقول قائل أَنَا أَوْلَى وَيَأْبَى اللَّهُ وَالْمُؤْمِنُونَ إِلاَّ أَبَا بَكْرٍ)يعني را وغواړه وماته ابوبکر ستا پلار او ستا ورور جي وليکم يوشي دابي بکر لپاره خکه زه ببريږم لدې څخه جي تمنا به وکړي يو تمنا کونکی وايي به يو ويونکی جي زه لائق يم په خلافة سره په داسي حال کي جي منع کوي الله تعالى اوهم مؤمنان له خلافة څخه دبل چاپر ته له ابي بکر څخه.دخلافت موده ئي دوه کاله درې مياشتي وه په ديارلسم کال دهجرت وفات سو

(ثُمَّ عمر بن الخطاب الْفَارُوق)بن نفيل بن عبد العزى بن رباح بن عبدالله بن قرط بن رزاح بن عدى بن كعب القرشي العدوى

حضرت عمر رضي الله تعالى عنه ته فاروق وبل کيږي خکه دی ښه بېلونکی وو ترمنځ دحق اوباطل په کومه ورځ جي ده مبارک اسلام راوړئ په هغه ورځ اسلام ښکاره سو په روايت کي دترمذی راځي له عبد الله بن عمر رضي الله تعالى عنهما څخه جي نبي عليه السلام وفرمايل جي الله تعالى کرزولئ ده حق پر ژبه دعمر او پر زړه دده

په خينو رواياتو کي راځي جي ديو يهودي او منافق ترمنځ دعوه وه يهودي ووېل جي نبي عليه السلام ته به ورسو جي فيصله را وکړي منافق غوښتل جي کعب اشرف ته ولاړسو بيا نبي عليه السلام ته ولاړو نبي عليه السلام فيصله وکړه په حق کي ديهودي منافق راضي نه سو په دې فيصله او وي ويل يهودي ته جي راځه حضرت عمر رضي الله تعالى عنه ته کله جي حضرت عمر رضي الله تعالى عنه راغلو نو يهودي ورته ووېل جي نبي عليه السلام زما په حق کي فيصله وکړه دی په راضي نه سو اوس تاته راغلئ حضرت عمر منافق ته ووېل ايا همداسي ده هغه ورته ووېل هو نو ده مبارک ووېل ودريږئ ترڅو زه را ووځم تاسوته کورته ولاړئ او توره ئي را واخستله او دمنافق غاړه ئي پر ووهله اوهغه ئي مړ کړ بيا ئي ووېل دافيصله ده زما په حق کي دهغه چا جي

نه راضي کیږي په فیصله دالله تعالی او دهغه رسول حضرت جبرائیل علیه السلام وویل عمر جلا والئ را وستئ ترمنځ دحق اوباطل نو نامداره سو په فاروق سره

دحضرت عمر رضي الله تعالی عنه پرخلافت باندي دټول امت اجماع ده حضرت ابوبکر صدیق رضي الله تعالی عنه دی خپل خلیفه مقرر کړ په هغه ورځ کي چي ابوبکر رضي الله تعالی عنه وفات سو اوټول صحابه راضي سو په خلافت دعمر رضي الله تعالی عنه اشاره سوي وخلافت د دوی دوو په دي قول کي دنبي علیه السلام(اقتدوا بالذین من بعدي أبي بکر وعمر)یعني اقتداء وکړئ ورسته ترما په ابوبکر اوعمر رضي الله تعالی عنهما پوسي

دده مبارک دخلافت موده لس کاله اوشپږ میاشتي وه په درویشتم کال د هجرت دسهار په لمانځه کي دابو لؤلؤة لخوا چي نوم ئې فیروز وو دمغیرة بن شعبة غلام وو په خنجر سره ووهل سو او له وهلو بعد ئې دري ورځي درنګ وکړ او بیا شهید سو

(ثُمَّ عُثْمَان بن عَفَّان ذُو النورين) ابن العاص بن امیة بن عبد شمس بن عبد مناف بن قصی القرشی الاموی

لقب ئې ذوالنورین وو ځکه نبي علیه السلام یو وار یوه لور چي رقیه وه په نکاح ورکړه هرکله چي هغه وفات سوه بیا ئې بله لور چي ام کلثوم وه په نکاح ورکړه، حسین الجعفي رحمه الله تعالی وایي چي دادم علیه السلام له وخت څخه بیا تر اوسه داسي نده پیښه سوي چي دیوه نبي دوي لوني دي دیوه سړي په نکاح کي راسي بغیر له عثمان رضي الله عنه څخه نو ځکه په ذوالنورین سره نامداره سو

حضرت عثمان رضي الله تعالى عنه هغه څوک وو چې ملائکو به له ده څخه حیاکوله په یو روایت کې راځي له ابن عمر څخه(والذی نفس محمد بیده إن الملائکة لتستحیی من عثمان کما تستحیی من الله ورسوله)

دی مبارک په مکه کې پیداسوی وو ورسته ترعام الفیل شپږ کاله ترنبي علیه السلام تقریبا پنځه کاله کشر وو توله موده دخلافت ئې لس کاله وه دري میاشتي کم دجمعې په ورځ وفات سو په داسي حال کې چې تلاوت ئې کوئ

(ثُمَّ عَلِيّ بن أبِي طَالب المرتضى) بن عبدالمطلب بن هاشم بن عبدمناف بن قصی القرشی الهاشمی

کنیه ئې ابو الحسن او ابوالتراب ده لقب ئې المرتضی ده دنبي علیه السلام داکا زوی ده دفاطمة الزهراء رضي الله تعالى خاوند ده نبي علیه السلام حضرت علي رضي الله تعالى عنه ته وویل(لا یحبك إلا مؤمن ولا یبغضك إلا منافق) یعني محبت نکوي ستاسره مګر هغه څوک ئې کوي چې مؤمن وي او بغض نکوي ستاسره مګر هغه څوک ئې کوي چې منافق وي

دخلافت موده ئې څلور کاله نهه میاشتي او یو څو ورځي وه دعبدالرحمن بن ملجم المرادي لخوا په اولسمه ورځ دروژې په کوفه کې ووهل سو له وهلو پس ئې دري ورځي ژوند وکړ اوبیا وفات سو

(رِضوَان الله عَلَيهِم أجْمَعِينَ)یعني الله تعالى دې له دوی څخه راضي سي دغه څلور صحابه چې ذکر سو دوی ته خلفاء راشدین ویل کیږي او څلور سره له عشرة مبشرة وڅخه دي

## دخلفاء ترمنځ تفاضل

فضیلت د ابوبکر اوعمر رضي الله تعالى عنهما پر نورو صحابه کرامو باندې اتفاقي خبره ده ترمنځ داهل السنة والجماعة اوفضیلت دعثمان رضي الله تعالى عنه پرعلي رضي الله تعالى عنه باندي هم د ډېرو علماو له اهل السنة

والجماعة څخه دغه رايه ده پر ته له خينو اهل البصرة او اهل الكوفة څخه چې ددې خبري خلاف دي

ټول روافض او ډير معتزله وايي چې حضرت علي رضي الله تعالى عنه فضيلت لري پر ابوبكر رضي الله تعالى عنه باندي. اوله امام اعظم رحمه الله تعالى څخه يو روايت نقل سوئ ده چې حضرت علي رضي الله تعالى عنه پرحضرت عثمان رضي الله تعالى باندي فضيلت لري. ليكن دجمهور اهل السنة والجماعة مسلک صحيح ده او دغه خبره چې حضرت عثمان رضي الله تعالى فضيلت لري پر علي رضي الله تعالى عنه باندي دامام صاحب له كلام څخه هم معلوميږي څکه چې په خپل كتاب كي ئې دخلافت دمراتبو سره سم خپل كلام ترتيب كرئ ده

عابدين لله ثابتين على الحق ومع الحق نتولاهم جميعا ولانذكر أحدامن أصحاب رسول الله إلا بخير

وو دوى تول عبادت كونكي اوپرحق باندي ثابت اوپر حقه لار وو موږ محبت لرو له دوى ټولو سره او موږ نه ذكر كوو يوصحابي هم له اصحابو دنبي عليه السلام مكر په ښو اوخير سره ئې ذكر كوو

تشريح

(عابدين ثابتين على الحق ومع الحق)يعني دوى په خپلو ټولو افعالواوكاروكي غاړه ايښو دونكي وو الله تعالى لره او تابع وو سنتو دپيغمبر صلى الله عليه وسلم لره، هميشه پرحق باندي قائم اوثابت وو نه اوښتو له حق څخه هيڅكله او وو ملكري دحق هرچيري چي به حق وو

په بعضي نسخوكي داسي راغلي غابرين على الحق كما كانوا يعني پاته اودائم وو پرحق باندي لكه څنكه چي وو مخكي هيڅ تغير نده راغلئ ددوى په حالاتو كي او نه كوم نقصان ددوى په كمالاتو كي

په خينو نسخوكي داسي دي عابرين على الحق يعني تلونكي اوسلوك كونكي وو پر لار دحق باندي هيڅكله ئې سلوك نده كړئ بيله لاري دحق پر بله لار

په دي قول كي دامام اعظم رحمه الله تعالى پر هره نسخه رد سته پر روافضو خكه دوى وايي چي حضرت ابوبكر عمر عثمان رضي الله تعالى عنهم ندي پاته سوي پرهغه حال پركوم حال چي دوى وو په زمانه كي دنبي صلى الله عليه وسلم. همداسي په دي قول كي رد سته پرخوارجو خكه دوى بيا وايي چي حضرت علي رضي الله تعالى عنه او دده ملكري همداسي معاوية رضي الله تعالى عنه او دده ملكري ټول كافران وو العياذ بالله داخكه چي دوى مرتكبين وو دقتل اودا ددوى په نېز داسي كناه ده چي مرتكب ئې كافرده

(نتولاهم جميعا)يعني موږ محبت لرو له دوی تولو سره هيڅ فرق نکوو ترمابين
ددوی په داسي ډول چي بعضي دي محبوب وي موږ ته او بعضي مبغوض
لکه روافض چي بغض کوي له ابوبکر عمر عثمان رضي الله تعالی عنهم سره
او يا خوارج چي بغض کوي له حضرت علي رضي الله تعالی عنه سره

دامام مالک رحمه الله تعالی څخه پوښتنه وسوه له مذهب اومسلک څخه
داهل السنة والجماعة ده مبارک ووېل چي داهل السنة مسلک داده چي
بهتري ورکوي شيخينو ته يعني ابوبکر اوعمر رضي الله تعالی عنهما ته پر نورو
صحابه و باندي او محبت کوي له زومانو دنبي عليه السلام سره يعني عثمان
او علي رضي الله تعالی عنهما سره او مسح جائز بولي پر موزو باندي او لمونخ
کوي ترشا دهر بر او فاجر

قران کي الله جل جلاله په حق کي دصحابه و فرمايي (وَالسَّابِقُونَ الأَوَّلُونَ مِنَ
الْمُهَاجِرِينَ وَالأَنصَارِ وَالَّذِينَ اتَّبَعُوهُمْ بِإِحْسَانٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ)
التوبة_ يعني هغه لومړني او اولني کسان له مهاجرو او انصارو څخه اوهغه
کسان چي پيروي ئې کړي وي ددوی په نيکي کي الله تعالی راضي ده له دوی
څخه او دوی راضي دي له الله جل جلاله څخه.پردي دټول امت اجماع ده
چي څلور سره خليفه ګان داخل دي په سابقينو اولينو کي

(وَلَا نذْكر أحدا من أصْحَاب رَسُول الله إِلَّا بِخَير )يعني موږ نه ذکر کوو هيڅوک
له اصحابو دنبي عليه السلام مګر په ښو اوخير سره ئې ذکر کوو که څه هم
له ځينو څخه ځيني داسي کارونه صادر سوي دي چي په ظاهر سره شر
معلوميږي ځکه دابه يا د دوی اجتهادي خطاء وي اويا به دفساد اوعناد په
توګه نوي

حديث کي راځي نبي عليه السلام فرمايي (خير القرون قرني) يعني بهتره اوښه
زمانه په ټولو زمانو کي زما زمانه ده

په بل حديث کي راځي(إذا ذكر أصحابی فأمسكوا) يعني چې کله زما داصحابو ذکر کیږي نوتاسو چپ پاته سئ له دې وجهې څخه جمهور علماو دامسلک مختاره کړئ چې تول صحابه دحضرت عثمان رضي الله تعالی عنه ترفتني مخکي هم عادلان وو او تر هغې ورسته هم عادلان وو خکه نبي عليه السلام فرمايي (أصحابي كالنجوم بأيهم اقتديتم اهتديتم)يعني زما صحابه دستورو په شان دي په هرېوه پسي چې اقتداء وکړئ حقه لار به پيداکړئ هغه شخړي او جنګونه ترمابين د دوی چې رانقل سوي دي داتول موږ حمل کوو پراجتهاد باندي امام شافعي رحمه الله تعالی وايي دا هغه وينې دي چې الله تعالی زموږ لاسونه څني پاک کړي دي نو ولي موږ ککړو په هغو وينو سره خپلي ژبي.دامام احمدرحمه الله تعالی څخه پوښتنه وسوه له قضیې دحضرت علي رضي الله تعالی عنه او دعائشي رضي الله تعالی عنها ده مبارک وفرمایل( تِلْكَ أُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَلَكُمْ مَا كَسَبْتُمْ وَلَا تُسْأَلُونَ عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ (١٣٤)البقرة_يعني دايوه ډله وه چې تېره سوي ده هغې لره هغه څه دي چې دوی ئې کسب کړئ او تاسو لره هغه څه دي چې تاسي ئې کسب کوئ ستاسو څخه پوښته نه کيږي د دوی داعمالو

وَلَانكفرمُسلما بذنب من الذنوب وَإِنكَانَت كَبِيرَة إِذا لم يستحلها وَلَانزيل عَنهُ اسْم الْإِيمَان ونسميه مُؤمنا حَقِيقَة وَيجوز ان يكون مُؤمنا فَاسِقًا غيركَافِر

اوموږ كافر نه بولو هيڅ يومسلمان په يوه ګناه سره له ګناوو كه څه هم غټه ګناوي تر څو چي هغه ګناه روا ونه بولي او نه موږ زائلوو له هغه څخه نوم دايمان او موږ ئې بولو مؤمن حقيقي او دا روا ده چي يو مؤمن فاسق سي خو كافر نده

## تشريح

(وَلَانكفرمُسلما بذنب من الذُنُوب وَإِنكَانَت كَبِيرَة إِذا لم يستحلها)يعني موږ كافر نه بولو مسلمان په سبب دګولو دګناه كه څه هم غټه او لويه ګناه وي په دې شرط چي حلاله او روا ئې نه وبولي خكه هغه ګناه چي حرمت ئې په دليل قطعي سره ثابت وي كه څوك روا اوجائز وبولي هغه كافر ده په الله تعالى او په رسول دهغه خكه په استحلال كي ئې تكذيب ده دالله تعالى او دهغه درسول صلى الله عليه

## په مرتكب دكبيرى ګناه كي درې مذهبه دي

خوارج وايي چي مرتكب دكبيري ګناه كافرده او زائليږي له ده څخه نوم دايمان، مرجئه وايي چي دايمان سره ګناه كوم ضرر نه رسوي لكه له كفر سره اطاعت، معتزله مرتكب د كبيري ګناه خارج بولي له ايمان څخه خو په كفر كي ئې هم داخل نه بولي دايمان اوكفر په مابين كي بله مرتبه ثابتوي سره له اتفاق پردې خبره چي مرتكب دكبيري ګناه به هميشه په جهنم كي وي.داهل السنة والجماعة مسلک هغه ده چي امام اعظم ذكر كړئ

## دهغه چا حكم چي صحابه و ته ښكنځل كوي

ملاعلي قاري رحمه الله تعالى وايي چي دامام اعظم رحمه الله تعالى كلام

دلالت کوي پر دې باندې چې شيخينو يعني ابوبکر او عمر رضي الله تعالی عنهما ښکنځل کول کفر نده ځکه چې ښکنځل کول يو مؤمن ته فسق ده لکه په حديث کې چې راځي(سباب المسلم فسوق) يعني مسلمان ته ښکنځل کول فسق ده نوبيا خو شيخان او نور مؤمنان تول برابر دي په دې حکم کې خکه که فرض کړل سي چې يو څوک شيخين بلکه زومان دنبي عليه السلام هم چې عثمان او علي رضي الله تعالی عنهما دي تول قتل کړي نو داهل السنة والجماعة په نبز کافر نده او دښکنځلو مرتبه خو ښکاره خبر ده چې تر قتل تيټه ده

په شرح العقائد کې راځي چې صحابه کرامو ته ښکنځل کول اوپر هغو طعن وېل که چيرې له هغه جملې څخه وي چې دقطعي دلائلو خلاف وي لکه د حضرت عائشې د قذف مسئله نو کفر ده او که له دغه قسمه نوي بيا کفر نده بلکه فسق اوبدعت ده

(وَلَانزِيل عَنهُ اسْم الْإِيمَان ونسميه مُؤمنا حَقِيقَة)يعني موږ نه زائلوو له هغه چاچې مرتکب وي دکبيرې گناه نوم دايمان او موږ ئې بولو مؤمن حقيقة نه مجازا خکه ايمان عبارت ده له تصديق دزړه او له اقرار د ژبې څخه اواعمال تول له جملې څخه دکمال دايمان دي په نبز داهل السنة والجماعة. او داقول دنبي عليه السلام من ترک الصلوة متعمدا فقد کفر يعني هغه څوک چې لمونځ پريږدي په قصدسره هغه کافر ده.دامحمول پرهغه قصد چې مقارن وي له استحلال او روا بللو سره او يا دا بنا ده پر تغليظ باندې

(وَيجوز ان يكون مُؤمنا فَاسِقًا غيركَافِر )يعني دا روا ده چې يوشخص دې مؤمن وي په سبب دتصديق او اقرار سره او فاسق دي وي په سبب دگناه کولو سره لېکن کافر نه بلل کيږي په سبب دگناه. لنده دا چې فسق اوبدعت نه زائلوي ايمان خکه فسق او بدعت له اعمالو څخه دي هيڅ تاثير نسته

اعمالو لره په تصديق كي دزره او اقرار كي دژ بي ترڅو چي تغير رانسي په تصديق او اقراركي له همدي وجهي قونوي وايي په شرح كي دعمدة النسفي لعنت دي نهٔ ويل كيږي پر هغه چا چي مرتكب دكبيري گناه وي خكه په دي گناه سره نهٔ زائليږي ايمان له هغه بلكه ايمان سته له ده سره او لعنت پر مؤمن جائز نده

## دمعتزله و دتسمي وجه

په دې مسئله كي داهل السنة والجماعة او معتزله و داختلاف بنياد داده چي يوه ورځ دمعتزله و رئيس واصل بن عطاء دحسن بصري رحمه الله تعالى له مجلس څخه ولاړ سو او جلاوالي ئې وكړ په دي وجه چي ويل ئې چي دكبيري مرتكب شخص نه كافر ده او نه هم مؤمن بلكه دايمان او كفر تر منځ ئې د بلي مرتبي اثبات كوئ نو حسن بصري رحمه الله تعالى وويل چي دوى زموږ له مجلس څخه جلاسو نو په معتزله و مسمى سول دوى خپل خانونه اصحاب العدل والتوحيد بولي خكه دوى وايي چي ثواب دمطيع او عقاب دعاصي واجب ده پر الله تعالى باندي

وَالْمسح على الْخُفَّيْنِ سنة والتراويح فِي لَيَالِي شهر رَمَضَان سنة وَالصَّلَاة خلف كل بَر وَفَاجِر جَائِزَة

اومسح كول پرموزوباندي سنت ده اوتراويح كول په شپو كي د روژي د مياشتي سنت دي او لمونځ كول تر شا دهرنيک عمله او بدعمله جائز ده

تشريح

(وَالْمسح على الْخُفَّيْنِ سنة)يعني جواز دمسح پرموزوباندي ثابت ده په سنة سره دائي مراد نده چي مسح كول سنت دي ځکه مسح كول رخصت ده او سنة قسم ده له عزيمة څخه

## دمسح على الخفين ثبوت په قران سره

ملاعلي قاري رحمه الله تعالى وايي دالبره نده چي دمسحي ثبوت واخستل سي له دي قوله دالله جل جلاله(وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَيْنِ)المائدة ځکه ارجلكم په يوه قراءت كي په نصب دلام سره ده چي معنى ئې ده پريمنځي پښې خپلې تر بجلكو او په بل قراءت كي بيا په جر سره دلام ده چي معنى ئې ده مسح وكړئ پرپښو خپلو باندي تر بجلكو دا دواړه قراءتونه سره متعارضان دي ظاهرا او دحكم په لحاظ مبهم پاته دي نبي عليه السلام په خپل فعل سره د دواړوحكم بيان وكړ چي دموزو دپښوكولو په وخت كي مسح پر وكړئ او دلڅو پښو په وخت كي ئې پريمنځئ .

امام اعظم رحمه الله تعالى وايي ما حكم نده كړئ په جواز دمسح تر څو ماته راغله دغه خبر په شان درڼا د ورځي په يوه روايت كي له امام صاحب څخه راځي چي زه بېرېږم له كفره پرهغه چا چي مسح پرموزو جائز نه بولي حسن بصري رحمه الله تعالى وايي چي ماته دنبي عليه السلام له صحابه و څخه اويا كسانو داخبره وكړه چي نبي عليه السلام به مسح كوله پر موزوباندي

مسح پر موزوباندي دمسافر لپاره دري شواروزه او دمقيم لپاره يو شواروز جائز ده، جواز دمسح پر موزو يو فقهي مسئله ده اعتقادي نده دا چې امام اعظم رحمه الله تعالى دلته راوړه په دې خاطر چې په دې کې اختلاف دروافضو سته څکه دوی مسح پر موزو جائز نه بولي بلکه پر لڅو پښو مسح کوي

(والتراويح فِي لَيَالِي شهر رَمَضَان سنة) يعني تراويح کول په شپوکي دروژې دمياشتي داصل په اعتبار سنت دي څکه نبي عليه السلام وکړ دتراويح لمونځ يو څو شپې بيا ئې په دې خاطر چې واجب نسي پرينښو ولي اويا په دې وجه چې عام خلک دا ګمان ونکړي چې دا واجب دي

داقول دعمر رضي الله تعالى عنه(نعمت البدعة هذه)يعني دغه ډير ښه بدعت ده دا يا په دې اعتبار چې دنبي عليه السلام تر پرينښولو ورسته دوباره احياء کول ډير ښه بدعت ده اويا دغه جمعوالئ دخلکو پر يوه امام باندي د تراويح په لمانځه کې ډيرښه بدعت ده څکه مخکې خلکو جلا جلا کولي له دې سره سره نبي عليه السلام فرمايي(عليكم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدين) يعني لازم ده تاسو باندي داچې سلوک به کوی زماپرطريقه او دخلفاء راشدينو پرطريقه باندي

(وَالصَّلَاة خلف كل بَر وَفَاجِر جَائِزَة) يعني لمونځ کول په هر نيکوکاره او بد کاره پوسي جائز او رواده څکه دبيهقي په روايت کې راځي(صلوا خلف كل بر وفاجر وصلوا على كل بر وفاجر وجاهدوا مع كل بر وفاجر )يعني لمونځ کوئ په هر نيک عمله او بدعمله پوسي او لمونځ کوئ دجنازې پر نيکوکاره او بدکاره باندې او جهاد کوئ په مشرتوب کې دهر بر او فاجر.ملاعلي قاري وايي چې که چا لمونځ دجمعې او يا دجماعت پرېښوئ ترشا دامام فاجر نو هغه بدعتي ده

صحيح داده چې لمونځ به کوي بيا به ئې نه راګرزوي

دامسئله او مخکنی مسئله دواړې له مسائلو فقهيه و څخه دي له اعتقادي

مسائلو څخه ندي ليکن امام اعظم رحمه الله تعالی دلته ذکر کړي دي خکه

دي کې اختلاف دروافضو او معتزله و سته

وَلَانقُول إِن الْمُؤمن لَاتضره الذُنوب وَلَانقُول إِنَّه لَايدْخل النَّار وَلَانقُول إِنَّه يخلد فِيهَا وَإِن كَانَ فَاسِقًا بعد ان يخرج من الدُنْيَا مُؤمنا

او موږ داسي نه وايو چي مؤمن ته گناوي ضرر نه رسوي او نه هم داسي وايو چي مؤمن به اورته نه داخليږي او نه هم داسي وايو چي مؤمن به هميشه په اورکي وي که څه هم فاسق وي خو ورسته تردې چي ووزي له دنيا څخه په داسي حال کي چي مؤمن وي

## تشريح

(وَلَانقُول إِن الْمُؤمن لَاتضره الذُنُوب)هغه مؤمن چي باورلري په زړه سره پر الوهية د الله تعالى باندي او اقرار کوي په ژبه سره ليکن مرتکب سي ديو لوي گناه په داسي حال کي چي ببربدونکي وي له عذاب دالله تعالى او اميد در لودونکی هم وي وبخښي ته دالله تعالى که چيري مرمي مخکي تر توبي نودادالله تعالى ترمشيئة لاندي ده په نبزداهل السنة والجماعة که ئې خوښه سوه عذاب به ورکړي او که ئې خوښه سوه بخښه به ورته وکړي لکه چي الله تعالى فرمايي(إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ)النساء_ يعني بېشکه الله تعالى نه بخښي داچي شريک دي ونيول مي له ده سره او بخښي بغير له شرک څخه نوري گناوي هغه چالره چي خوښه ئې سي بخښنه دهغه . داهلته چي ببله توبي مرسي څکه په توبه سره الله تعالى ټولي گناوي دبندگانو بخښي که کفر وي اوکه غير له کفره څخه نوري گناوي دخپلي وعدي پرمقتضى باندي

مرجئه ډله وايي چي دي انسان ته به الله جل جلاله عذاب نه ورکوي قطعا څکه ددوى په نبز له ايمان سره گناه ضرر نه رسوي لکه له کفره سره اطاعت

اومعتزله بيا وايي چي دې انسان ته به الله جل جلاله عذاب ورکوي قطعا څکه ددوی په نبز په ګناه کبيره سره سړئ خارجيږي له ايمان څخه لیکن داهغه ګناوي چي شريعت نۀ وي ګرزولي علامي دکفرخکه هغه ګناوي چي هغه علائم دکفر وي په شرعي دلائلوسره لکه سجده وبت ته اواچول دقران په مرداريوکي اوويل د کلمي دکفر دا داخلې دي په شرک کي ببله توبې نه بخښل کيږي

(وَلَانقُول إِنَّه لَايدْخل النَّار)يعني موږ داسي هم نه وايو چي دغه مؤمن چي مرتکب سوئ ده دکبيري ګناه دا به اور يعني جهنم ته نه داخليږي لکه مرجئه چي وايي دايمان سره ګناه ضرر نه رسوي بلکه موږ ني دالله تعالى ترمشيئة لاندي بولو

(وَلَانقُول إِنَّه يخلد فِيهَا وَإِن كَانَ فَاسِقًا بعد ان يخرج من الدُّنْيَا مُؤمنا)يعني داسي هم نه وايو چي دغه ګناه کار مؤمن به هميشه په جهنم کي وي که ني څه هم تولي ګناوي کړي وي خو په دې شرط چي له دنيا څخه پر ايمان وتلئ وي يعني خاتمه ني پرايمان وي معتزله وايي چي دا به هميشه په اور کي وي

لنډه دا چي موږ يقين لرو پر دي باندي چي الله جل جلاله به بخښه کوي له خينو ګناوو څخه چي خوښه ني سي ليکن توقف کړو په حق کي دهر معين او مشخص انسان چي ايا دېته به الله جل جلاله بخښه کوي او که يا همداسي يقين لرو چي کله الله تعالى يو مؤمن ته عذاب ورکوي هغه به هميشه نه وي بلکه عذاب ني به قطعه کيږي يو وخت

دا رواده چي الله تعالى بخښه وکړي له کبيري ګناه او عذاب دي ورکړي پر صغيري باندي او يا ددي بالعکس.هيڅکله موږ ديوچا په حق کي نه وايو چي دا جنتي ده يا جنهمي غير له عشرة مبشرة څخه رضوان الله تعالى عليهم اجمعين

وَلَا نقُول أن حَسنَاتنَا مقْبولَة وسيئاتنا مغفورة كَقَوْل المرجئة وَلَكِن نقُول من عمل حَسَنَة بِجَمِيع شرائطها خَالِيَة عَن الْعُيُوب الْمُفسدَة والمعاني المبطلة وَلم يُبْطِلهَا بالْكفْر حَتَّى خرج من الدُّنْيَا مُؤمنا فَإِن الله تَعَالَى لَايضيعها بل يقبلهَامِنْهُ ويثيبه عَلَيْهَا

اوموږ نه وايو چې زموږ ټول نيک اعمال قبول دي اونه هم داسې وايو چې زموږ ګناوې ټولې بخښل سوي دي لکه مرجئه چې وايي ليکن موږ وايو هغه څوک چې عمل وکړي دنيکۍ په ټولو شرائطوسره په داسې حال کې چې خالي وي له هغه عيبو څخه چې فاسدونکي وي اعمالو لره اوله هغه معاني و څخه چې باطلونکي وي او باطل ئې نه کړي په کفر سره تر څو چې ولاړ سي له دنيا په داسې حال کې چې مؤمن وي نو ببشکه الله جل جلاله نه ضائع کوي نيکۍ دده بلکه الله تعالى ئې قبلوي څني اوثواب ورکوي دته پردې نيکۍ باندې

تشريح

(وَلَانقُول أن حَسَنَاتنَامَقْبُولَة وسيئاتنامغفورة)يعني موږ نه وايو په ژبه سره اونه هم اعتقاد لرو په زړه سره ددې چې زموږ نيکۍ خامخا قبلې سوي دي اوګناوي مو بخښل سوي دي

(كَقَوْل المرجئة)دا لفظ له ارجاء څخه اخستل سوئ ده معنى ئې ده ځنډول دغه ډلې ته مرجئه ويل کيږي په دې وجه چې دوی ځنډوي اعمال په دې معنى دوی نه مرتبه وي پراعمالو باندې ثواب اوعقاب بلکه دوی وايي چې مؤمن مستحق ده دجنت په ايمان سره نه په عباداتوسره او کافر مستحق ده د جهنم په کفر سره نه په نورو ګناوو سره

## امام صاحب ته دارجاء نسبت.

داچې په څينو کتابو کې امام اعظم رحمه الله تعالى ته ارجاء منسوب سوې ده هغه په دې معنى نده چې مخکې ذکر سوه بلکه هغه په دې معنى چې امام

اعظم رحمه الله تعالى څنګ وي امر دهغه چا چې مړ سي او توبه نه وكاړي له ګناه څخه ومشيئة ته دالله تعالى نه حكم كوي په ثواب دهغه اونه هم په عقاب دُ هغه بلكه دالله جل جلاله كه خوښه سوه ثواب به وركړي او كه نې خوښه سوه عذاب به وركړي په دې معنى ارجاء دټولو اهل الحق قول ده

(وَلَكِن نقُول من عمل حَسَنَة بِجَمِيع شرائطها خَالِيَة عَن الْعُيُوب الْمفْسدَة)يعني بلكه موږ دا وايو او دا عقيده لرو چې كه يومؤمن نيک عمل وكړي سره له ټولو شرائطو ددې عمل لكه لمونځ په اوداسه سره اوصدقه په نيت دقربت او دامي نور په داسي حال كي چې پاک وي له هغه عيبو څخه چې فاسدونكي وي عمل لره لكه خبري كول په لمانځه كي

(والمعاني المبطلة)اوپاک وي له هغه عيبو څخه چې باطلونكي وي عمل لره لكه من او اذي څكه داعمل باطلوي(يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوالَاتُبْطِلُواصَدَقَاتِكُمْ بِالْمَنِّ وَالْأَذَى)البقرة يعني اي مؤمنانو تاسومهٔ باطلوئ خپلي صدقي په احسان اچولو اوضرررسولو سره

(وَلم يُبطلهَا بالْكفْر)يعني باطل كړئ نې هم نه وي دغه عمل په ارتداد سره لكه چې فرمايي الله تعالى (وَمَنْ يَكْفُرْ بِالْإِيمَانِ فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهُ)المائدة_يعني څوک چې كفروكړي اومنكرسي له هغه شي څخه چې ايمان راوړل ضروري وي هغه باندي نوضائع سونيک عمل دده.

په كولو سره دګناه كبيري نه عمل فاسديږي اونه نې هم ثواب باطليږي په نېز داهل السنة والجماعةاو داحديث چې وارد سوى ده(الحَسَدَ يأكُلُ الحَسَنَاتِ كماتأكُلُ النّارُالحَطَبَ) يعني حسد نيكى داسي خوري لكه اور چې لرګي خوري دهغه دامي تاويل سوى ده چې دېر وار پېښه سي چې حسدحاسدېر داسي كارو باندي وګماري چې ضرر لي محسود ته ورسيږي نو محسود ته به په ورځ دقيامت دحاسد نيكى وركول كيږي نو ګواكي حسد دحاسد نيكى وخوړلي

(حتى خرج من الدنيا مؤمنا)په دي قول كي دامام صاحب اشاره ده دېته چي ترڅو په دنيا كي وي داخطره سته چي خپل عمل باطل او فاسدكړي

(فإن الله تعالى لايضيعها بل يقبلهامنه ويثيبه عليها)يعني نو الله تعالى نه ضائع كوي دده دغه عمل چي ده كړئ سره له تولوشرانطو بلكه خني قبلوي ئې په خپل فضل اوكرم سره او پر دي عمل باندي ثواب وركوي دخپلي وعدي پر مقتضى باندي لكه چي فرمايي الله تعالى(إِنَّ اللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ (التوبة_ ١٢٠) يعني ببشكه الله تعالى نه ضائع كوي بدله دنيكى كونكو خلك

وَمَا كَانَ من السَّيِّئَات دون الشّرك وَالْكفْر وَلم يتب عَنْهَا صَاحبهَا حَتَّى مَاتَ مُؤمنا فَإِنَّهُ مُؤمن فِي مَشِيئَة الله تَعَالَى إِن شَاءَ عذبه بالنَّار وَإِن شَاءَ عَفا عَنهُ وَلم يعذب بالنَّار أصلا والرياء إِذا وَقع فِي عمل من الْأَعْمَال فَإِنَّهُ يبطل أجره وَكَذَلِكَ الْعجب

اومغه چې وي له ګناوو څخه کم ترشرک اوکفر او مرتکب ئې توبه نه وي ايستلې له هغه ګناووڅخه تر هغه چې مړسو مؤمن نو دا مؤمن په مشيئة کې دالله تعالی ده که ئې خوښه سوه عذاب به ورکړي په اور سره او که ئې خوښه سوه بخښنه به وکړي دته او عذاب به له سره ورنکړي او رياء که واقع سوه په يوعمل کې له اعمالو نوهغه باطلوي ثواب ددې عمل او همداسې عجب که واقع سي په عمل کې

تشريح

(وَمَا كَانَ من السَّيِّئَات دون الشّرك وَالْكفْر)يعني ټولې ګناوې که وړې وي اوکه غټې ماسوا له شرک او کفرڅخه خکه شرک او کفر الله تعالی نه بخښې ببله توبې څخه نو که يوڅوک مړسي پر شرک او کفر باندې هغه به دهميشه لپاره په جهنم کې وي

(وَلم يتب عَنْهَا صَاحبهَا حَتَّى مَاتَ مُؤمنا فَإِنَّهُ مُؤمن فِي مَشِيئَة الله تَعَالَى) يعني توبه ئې نه وي ايستلې له دغه ګناوو څخه مرتکب ددې ګناوو بلکه مصر وي پر دغه ګناوو باندې ببلا قصده داهانة او استخفاف ترڅو مړ سي ببله توبې خو دايمان سره چې تصديق او اقرار ده نو دامؤمن دالله تعالی ترمشيئة اوارادې لاندې ده

(إِن شَاءَ عذبه بالنَّار وَإِن شَاءَعَفاعَنهُ وَلم يعذب بالنَّارأصلا)يعني که ئې خوښه سوه عذاب به ورکړي په قدر دګناه دخپل عدل پر مقتضی باندې بيا به نجات ورکړي له عذابه او که ئې خوښه سوه عفوه اوبخښه به ورته وکړي عذاب به ورنکړي له سره بلکه جنت ته به ئې داخل کړي په خپل فضل سره

(والرياء إذا وَقع فِي عمل من الأَعْمَال فَإِنَّهُ يبطل أجره)يعني رياء چې كله راسي په يو عمل كې له اعمالو نو باطلوي ثواب دهغه عمل

ملاعلي قاري وايي رياء اوسمعة دواړه په يو معنى دي خكه ددواړو مآل او حقيقت يو ده چې ترک داخلاص ده په عبادت کې رياءكار عبادت كوي ددې لپاره چې خلک ئې ووينې اودښه کمان ورباندې وکړي اومسمع ددې لپاره عبادت كوي چې خلكو ته ئې ور واوري غرض ئې دالله تعالى رضاء نوي نوكه په يو عمل كې رياء راسي كه په ابتداء كې وي دعمل اوكه په مابين كې وي ثواب ئې باطلوي بلكه كناه ورته ثابتيږي لكه فرمايي الله تعالى(فَمَنْ كَانَ يَرْجُو لِقَاءَ رَبِّهِ فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَالِحًا وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهِ أَحَدًا(١١٠) الكهف

يعني هر څوک چې اميد لري دملاقات درب خپل نو عمل دې وكړي نيک عمل او شريكوي دي نه په عبادت كې درب خپل هيڅوک

ايت دې خبره باندې دلالت كوي چې رياء په عبادت كې شرک ده البته شرک خفي حديث كې راځي(من كان أشرك في عمل عمله لله أحدا فليطلب ثوابه من عند غير الله فإن الله أغنى الشركاء عن الشرك)يعني كه يوڅوک په يوعمل كې چې دالله تعالى لپاره ئې كوي بل څوک شريک کړي له الله تعالى نو طلب دې كړي ثواب ددې عمل پرته له الله تعالى له بل چا څخه څكه الله تعالى په ټولو شركاء كې بې پروا ده له شرک څخه

(وَكَذَلِكَ الْعجب) يعني همداسي عجب باطلوي ثواب دعمل لكه رياء چې ئې باطلوي سيدسند رحمه الله تعالى تعريف دعجب داسي كوي وهو عبارة عن تصور استحقاق الشخص رتبة لايكون مستحقا لهايعني عجب دېته ويل كيږي چې يوشخص تصور ووهي دځېل ځان لپاره داسحقاق دداسي رتبې چې دی دهغې مستحق نوي په واقع كې

ملاعلي قاري رحمه الله تعالى وايي چې امام اعظم رحمه الله تعالى دعمل دابطال حکم پوازي تر رياء اوعجب پوري منحصر کړئ ده او نوري گناوي ئې ندي ذکر کړي دائې دېته اشاره چې د رياء اوعجب پرته نوري گناوي دنيک عمل ابطال نسي کولای ماسوا له شرک اومن څخه خکه شرک او من دعمل ابطال کوي په نص سره دکتاب الله. اوکوم حديث چې ديلمی ئې روايت کړئ ده د هغه تاويل کيږي په نفی دکمال سره يعني روژه او اودس ئې کامل نده دهغه چاچې دا گناوي وکړي(خمس يفطرن الصائم وينقضن الوضوء الكذب والغِيبة والنميمة والنظر بالشهوة واليمين الكاذبة)يعني پنځه شيان دي روژه ماتوي او اودس ماتوي درواغ غيبت چوغلي اوکتل په شهوة سره نامحرم ته او قسم کول په درواغوسره .

همدامي دهغه حديث چې طبراني ئې روايت کړئ تاويل کيږي په دې سره چې که دچا بد عملي درياء اوعجب له وجهې څخه وه نودده نيک عمل خرابوي (وإنَّ سُوءَ الخُلُق لَيُفْسِد العملَ كمايُفسِدُالخلُّ العسلَ)يعني بېشکه بداعمال نيک عمل داسي خرابوي لکه سرکه چې عسل خرابوي

## والآيات ثَابِتَة للأنبياء والكرامات للأولياء حق

اومعجزې دانبياء لپاره اوكرامات داولياء لپاره ثابت اوحق دي

### تشريح

(والآيات ثَابِتَة للأنبياء)آيات جمع داية ده اصلي معنى ئې ده علامه مراددلته خنې معجزې دي يعني هغه خارق العادة كارونه دي چې صادرېږي له انبياء عليهم السلام څخه لكه ژوندي كول دمړي او پيدا كېدل داوبو له مابين دګوتو اويا نه سوځل په اورسره دې خارق العادة كاروته ايات ويل كېږي په دې خاطر چې الله تعالى اراده كوي په صدور ددې كارو له انبياء څخه داچې داعلامه اودليل سي پرصدق دانبياء او پر نبوت ددوی

(والكرامات للأولياء حق)كرامات هغه خارق العادة كارونه دي چې صادرېږي له اولياء څخه دې كاروته كرامات څكه وايي چې الله تعالى اراده كوي په صدور ددې كارو له اولياء څخه اكرام اواعزاز ددوی. اولياء هغه كسان دي چې پېژني الله تعالى اودهغه صفات په هغه اندازه چې ورته ممكن وي پرعباداتو دالله تعالى هميشه توب كوي له ګناوو څخه خان ساتي ددنيا له لذاتو شهواتو همدامي له غفلتو اوچتياتو څخه مخ اړوي

### دمعجزې او كرامت ترمنځ فرق

دمعجزې اوكرامة تر منځ فرق داده چې معجزه هغه خارق العادة كار ده چې صادر سي پرلاس ددامي چا چې مدعي دنبوت وي او هغه هم دمعارضې په توګه وي نو هغه كار چې خارق العادة نوي اويا خو خارق العادة وي ليكن د مدعي تكذيب كوي هغه له تعريف څخه دمعجزې وزي

اوكرامة بيا هغه خارق العادة كار ده چې ښكاره سي پرلاس ديو دامي چا چې مدعي دنبوت نوي لكه دحضرت عمر رضي الله تعالى عنه دخط رسېدلو په وجه درود نيل روانېدل او په مدينه منوره كې له ممبره څخه په نهاوند كې

خپل لشکر لیدل چې حضرت عمر رضي الله تعالی عنه ولیدئ او له دغه ځایه ئې ور برغ کړ وې ویل یا ساریة الجبل یعنې اي ساریة دغره لورته سه دلشکر امیر ئې نعره واوریدله له ډیري لبري مسافې څخه اویا لکه خالد بن ولید رضي الله تعالی عنه زهر وچښل اوهیڅ ضرر ئې هم نه ور ورساوه

مقصد داچې معجزې دانبیاء علیهم السلام او کرامات داولیاء رحمهم الله تعالی حق او ثابت دي په قران اوسنة سره لکه الله تعالی فرمایي په شان کې دعیسی علیه السلام(وَآتَيْنَا عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ الْبَيِّنَاتِ) البقرة _یعني موږ ورکړي وې عیسی علیه السلام ته معجزې ښکاره لکه مړي ژوندي کول اوداسي نورپه بل ځای کې الله تعالی فرمايي(اقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانْشَقَّ الْقَمَرُ (١) القمر_ یعني قیامت را نږدې سو او سپوږمي وچاودله یعني دوې ټوټې سوه . دغه دسپوږمی دوه ځایه کیدل دنبي علیه السلام معجزه وه څکه دحضرت انس رضي الله تعالی عنه څخه روایت سوي چې دمبارک وفرمایل چې مشرکانو سوال وکړ له نبي علیه السلام څخه ددې چې ور ښکاره کړي دوی ته معجزه نو نبي علیه السلام ور ولیدله دوی ته سپوږمی دوې ټکرې

همداسي دالله جل جلاله کتاب ناطق ده په دې چې کرامات داولیاء الله ثابت دي لکه چې فرمایي(كُلَّمَا دَخَلَ عَلَيْهَا زَكَرِيَّا الْمِحْرَابَ وَجَدَ عِنْدَهَا رِزْقًا قَالَ يَامَرْيَمُ أَنَّى لَكِ هَذَا قَالَتْ هُوَ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ)العمران_یعني کله چې به زکریا علیه السلام دې ته عبادت ځاني ته ننوت نو پیدابه ئې کړ له هغې سره څه خوراک وویل زکریا علیه السلام اي مریمې تاته داله کومه کیږي هغې وویل دادالله تعالی لخوا دې خلاصه داچې کرامت دولیانو ثابت ده په قران اوحدیث سره نو انکار لره د معتزله و او نورو بدعتیانو هیڅ اعتبار نسته داچې الله تعالی ددوی نصیب کم کړئ له دې مرتې اودرجې څخه نو داددې دلیل نسې کیداې چې کرامت نسته

امام اعظم رحمه الله تعال كلام موافق ده له كلام سره دجمهورو علماء چې وايي هرشي چې دنبي لپاره معجزه كيدايسي هغه دولي لپاره كرامت هم كيداي سي فرق ئې په دې كې ده چې په معجزه كي دعوه دنبوت وي

واما الَّتِي تكون لأعدائه مثل ابليس وَفِرْعَوْن والدجال ماروِيَ فِي الْأَخْبَار أنه كَانَ وَيكون لَهُم لَانسميهاآيَات وَلَا كرامات وَلَكِن نسميها قَضَاء حاجاتهم وَذَلِكَ لِأَن الله تَعَالَى يَقْضِي حاجات اعدائه استدراجا لَهُم وعقوبة لَهُم فيغترون بِهِ ويزدادون طغيانا وَكفرا وَ ذَلِك كله جَائِز و مُمكن

---

او هغه خارق العادة كارونه چې وي دښمنانو لره دالله تعالى لكه ابليس فرعون دجال چې روايت ئې سوي په حديثوكي چې وو اويا به وي دوى لره موږئې نه بولو معجزي او نۀ هم كرامات بلكه موږ ئې بولو پوره كول دحاجتو ددوى داځكه چې الله تعالى پوره كوي حاجتونه دخپلو دښمنانو په دامې توګه چې ددوى لپاره استدراج اوعذاب مې بيادوى ور باندي وغوليږي اوزيات مې مسر كيږي اوكفر ئې نور هم او دا ټول جائز اوممكن دي .

تشريح

(واما الَّتِي تكون لأعدائه مثل ابليس وَفِرْعَوْن والدجال)يعني هغه خارق العادة كارونه چې دالله تعالى له دښمنانو صادريږي لكه دابليس لپاره دمځكي لنديدل په دامې اندازه چې دمشرق اومغرب ټولو خلكو ته خپلې وسوسې اچولاي مې اويا جريان او تګ دده په مجرى كې دوينو دانسان. همدامې خارق العادة كارونه دفرعون لكه داچې رود نيل ته به ئې امر وكړ هغه به دده امر موافق روان سو الله جل جلاله ئې بيان كړئ دحكايت په توګه(أَلَيْسَ لِي مُلْكُ مِصْرَ وَهَذِهِ الْأَنْهَارُ تَجْرِي مِنْ تَحْتِي أَفَلَا تُبْصِرُونَ(٥١) الزخرف_ يعني ايا نده مالره باچاهي دمصر او دغه بهالي چې بهيږي لاندي ترما(ترمانى زما) ايا تامې نه وينئ. حتى دفرعون په باره كې خو لا دا هم نقل سوي دي چې كله به خپلې مانى ته ځئ نو دآس پښې به ئې دده غرض موافق لنديې دي او اوږدي دي.

همداسي ددجال په باره کي راځي چې يو سړی به مړ کړي اوبيا به ئې بېرته ژوندی کړي

(ما رُوِيَ فِي الْأَخْبَار أنه كَانَ وَيكون لَهُم)يعني له هغه واقعاتو څخه چې روايت ئې سوی په حديثو کي چې دا وو دي دښمنانو لره دالله تعالى اوبابه ورسته وي لکه ددجال خوارق، په کومو نسخو کي چې لفظ د ويکون لهم نسته نوخوارق ددجال هم په انه كان كي داخل دي خکه هرکله چې موږ ته اخبار له خوارقو ددجال داسي چا وکړ چې صادق ده نو هغه هم لکه خوراق ماضيه داسي دي

(لَانسميها آيَات وَلَا كرامات)يعني دغه خوارق چې ښکاره کيږي له دښمنانو څخه دالله تعالى موږ ئې نهٔ بولو آيات يعني معجزې خکه معجزې انبياء لره وي او نهٔ هم کرامات ورته وايو خکه کرامات اولياءالله لره وي او دااعداءالله دي

(وَلَكِن نسميها قَضَاء حاجاتهم)يعني موږ ددوی خوارقو ته ددوی دحوائجو پوره کول وايو، هرکله چې په نبز دبعض قاصر العقل خلکو داخبره ډېره بعيده وه چې يوڅوک دي دخپل دښمن حوائج ور پوره کړي نو امام اعظم رحمه الله تعالى بيان کړ حکمة دالله تعالى په دې کي په دې قول وذلک الخ

(وَذَلِكَ لِأَن الله تَعَالَى يقْضِي حاجات اعدائه استدراجالَهُم وعقوبةلَهُم) يعني دا خکه چې الله تعالى پوره کوي حاجتونه دخپلو دښمنانو لپاره داستدراج او عذاب په دې معنى چې دالله تعالى له جانبه دوی باندي مسلسل نعمتونه راځي سره له دې چې دوی ډوب دي په گمراهي کي نو کله چې دالله تعالى په نعمتو کي زياتوب راسي نو دوی داگمان کوي چې دا نزدېکت ده والله تعالى ته اوحال داچي داخذلان ده لکه چې فرمايي(سَنَسْتَدْرِجُهُمْ مِنْ حَيْثُ لَايَعْلَمُونَ [۱۸۲]الاعراف ژر به موږ دوی له داسي لورې په تدريج سره را ونيسو چې دوی به نه پوهيږي

حديث كې راځي دعقبةبن عامر رضي الله تعالی عنه له نبي عليه السلام څخه(قالإذا رأيتَ اللهَ يعطى العبدَ من الدنياما يحبُ وهو مقيمٌ على معاصيه فإنما ذلك منه استدراجٌ) يعني نبي عليه السلام ووېل چې کله چې ته ووېنې چې الله جل جلاله ورکوي بنده ته په دنيا کې هغه څه چې دی ئې خوښوي اوبيا هم ده مقيم وي پرګناوباندي نو دا استدراج ده دالله تعالی دلره

(فيغترون بِهِ ويزدادون طغيانا وكفرا)يعني دوی دوکه سول په دي قضاء دحوائجو خپلو په دې خاطر چې دوی به داحسان ګمان ورباندي وکړ په دامې حال کې چې هغه به استدراج وو نه احسان اوزياتوب به ئې وکړ په خپله سرکښې که به فجار وو اوکه به کفار وو نو په کفر کې به ئې زياتوب وکړ لکه چې فرمايې الله تعالى(وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا أَنَّمَا نُمْلِي لَهُمْ خَيْرٌ لِأَنْفُسِهِمْ إِنَّمَا نُمْلِي لَهُمْ لِيَزْدَادُوا إِثْمًا وَلَهُمْ عَذَابٌ مُهِينٌ (۱۷۸)ال عمران_يعني ګمان دي نکوي هغه خلک چې کافران دي چې موږ دوی ته مهلت ورکوو دا دوی لپاره خير ده بېشکه خبره داده چې موږ دوی ته مهلت ورکوو ددې لپاره چې دوی مخ ته ولاړسي په ګناوو کې او ددوی لپاره سپکوونکی عذاب سته

(وَذَلِكَ كله جَائِز و مُمكن)يعني واقع کېدل دخوارقو هم په نقل ثابت دي او هم دعقل په نېز محال ندي

## دخارق العادة اووه اقسام

پوه سه په دې چې خوارق اووه قسمه دي ارهاص،معجزة، كرامة، معونة، اهانة، استدراج، سحر.څکه خارق العادة کار که صادر وو له يوخبيث نفس څخه په سبب دکولو دداسې کاروچي تعليم اوتعلم ئې کيدئ دېته سحر وېل کيږي اوکه ښکاره سو پرلاس دداسي چاچي مدعي دنبوت وونوکه مخکې تربعثت ووارهاص ورته وېل کيږي اوکه ورسته وو معجزة ورته وېل کيږي په دې شرط چې موافق به وي له هغې دعوې سره چې ده کړې ده اوکه مخالف

ووبیا ورته اهانة اوتکذیب وبل کیږي اوکه مدعي دنبوت نه وو خوتابع وو دنبي بیانو که ولي وو کرامت ورته ویل کیږي اوکه عام سړی وونو دامعونة ده اوکه تابع نه وو دنبي نودابیا استدراج ده

ملاعلي قاري رحمه الله تعالی وایي چې امام اعظم رحمه الله تعالی علیه په خپل عبارت کي فرعون او ابلیس یو ځای راوړل ځکه له سدي څخه په یوه روایت کي راځي چې دی وایي (بلغنا ان جبرئیل علیه السلام قال لرسول الله ما أبغضت أحداً من عباد الله ما أبغضت عبدين أحدهما من الجنّ والآخر من الأنس فأما من الجنّ فإبليس حين أبى بالسجود لآدم وأما من الإنس ففرعون حين قال أنا ربكم الأعلى) یعني موږ ته داخبره رارسیدلي ده چې جبرائیل علیه السلام نبي علیه السلام ته وویل مابغض نده کړی له هیچاسره له بندګانو دالله تعالی دونه قدر بغض چې له دوو بندګانو سره ئې لرم یو له پیریانو څخه ده اوبل له انسانانو څخه ده له پیریانو څخه ابلیس ده چې کله ئې ادم علیه السلام ته له سجدي کولو څخه انکار وکړ اوله انسانانو څخه فرعون ده چې کله ئې وویل أنا ربكم الأعلى

ملا علي قاري وایي فرعون بد ده تر ابلیس په دوو وجهو یوه داچې فرعون له نسله دانسان څخه ده اوښکاره سوه له ده څخه دونه لویه نافرماني او ابلیس له پیریانو څخه او له هغو څخه نافرماني څه عجیبه خبرنده دوهمه وجه داچې ابلیس انکار وکړ له سجدي کولوڅخه پرته له الله تعالی وبل چاته چې ادم علیه السلام ده او فرعون دعوه وکړه دربوبیت و خپل ځان ته دتکبر ه وجه

وَكَانَ اللهُ تَعَالَى خَالِقًا قبل ان يخلق ورازقا قبل ان يرزق.....

او وو الله تعالی خالق مخکې تردې چې پېداکړي مخلوق او رازق وو مخکې تردې چې يوچاته رزق زرکړي

## تشریح

(وَكَانَ اللهُ تَعَالَى خَالِقًا قبل ان يخلق ورازقا قبل ان يرزق)يعني الله جل جلاله دمخلوق اومرزوق ترپيداکيدو مخکې لا دخالق اورازق په صفتو موصوف وو ددېته نو دمشتق منه دمعنی تروجود مخکې دمشتق اطلاق ويل کېږي داخکه چې دي الله تعالی دتخليق اوترزيق صفتونه ازلي دي اوداعالم حادث اوممکن ده نوکه دتخليق اوترزيق صفتونه له ازله ثابت نسي نو بيا خو به زمونږ دغه قول باطل سي چې مونږ وايو چې الله جل جلاله واجب ده په ټولو صفاتوسره امام اعظم رحمه الله تعالی دامسئله په تکرار سره ذکر کړي ده لپاره ددي چې تينګه سي دا صحيح عقيده دخلکو په زړوکي

علامه زرکشي رحمه الله تعالی وايي چې اطلاق دخالق او رازق پر الله جل جلاله باندي مخکې تر وجود دمخلوق اومرزوق حقيقي ده که څه هم تعلق ئې حادث ده اوکه مجاز سي نو بياخو به ئې نفی صحيح وي اوحال داچې داقول چې الله جل جلاله په ازل کې خالق او رازق نه وو ډير قبيح او ناروا قول ده نعوذ بالله من ذلک

وَاللهُ تَعَالَى يُرَى فِي الْآخِرَةِ وَيرَاهُ الْمُؤْمِنُونَ وهم فِي الْجَنَّة بأعين رؤوسهم بِلَا تَشْبِيه وَلَا كَيْفِيَّة وَلا كَمِية وَلَايكون بَينه وَبَين خلقه مَسَافَة

او الله تعالى ليدل كيږي په اخرت كي او ويني به ئې مؤمنان په داسي حال كي چي دوى به په جنت كي وي په ستركو دسرو خپلو ببله تشبيه اوببله كيفيت اوببله كميت څخه او نه به وي ترمنځ دالله تعالى او د مخلوق مسافه

## تشريح

(وَاللهُ تَعَالَى يُرَى فِي الْآخِرَةِ)يعني الله جل جلاله ليدل كيږي په اخرت كي. د ټولواهل السنة والجماعة مسلك او مذهب داده چي ليدل دالله تعالى ممكن دي محال ندي او دوى اتفاق كړئ پردې باندي چي رؤيةدالله تعالى به واقع كيږي په اخرت كي او دامختص ده په مؤمنانو پوري كافران ئې نسي ليدلاى نو دمعتزله و داقول چي رؤية دالله تعالى محال ده هيڅ اعتبار نه لري. دلائل له قران اوسنة څخه ډير موجود دي پردې باندي حتى له نبي عليه السلام څخه په باره كي درؤية تقريبا شلوكسانو صحابه و روايت كړئ. الله تعالى فرمايي (وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَاضِرَةٌ (٢٢)إِلَى رَبِّهَا نَاظِرَةٌ (٢٣)القيامة_يعني خيني مخونه به په دغه ورځ روښانه اوتازه وي خپل رب ته به كتونكي وي

په بل ځاى كي الله تعالى فرمايي(كَلَّاإِنَّهُمْ عَنْ رَبِّهِمْ يَوْمَئِذٍ لَمَحْجُوبُونَ(١٥) المطففين يعني داسي نده ببشكه دوى به دخپل رب له ديدار څخه په دغه ورځ منع كړل سوي وي

بل دليل درؤية همدا حديث ده دنبي عليه السلام(إنكم سترون ربكم كما ترون القمر ليلة البدر لا تضامون في رؤيته)يعني ببشكه تاسو به ژرده چي خپل رب ووينئ لكه چي وينئ سپوږمى دخوارلسم دشپي ببله ازدحام څخه ،

(وَيَرَاهُ الْمُؤْمِنُونَ وهم فِي الْجَنَّةِبأعين رؤوسهم)يعني وبني به مؤمنان الله تعالى په داسي حال كي چي دوی به په جنت كي وي په خپلو ستركو لكه چي راغلي دي حديث كي دنبي عليه السلام (إذا دخل أهل الجنة الجنة يقول الله تبارك وتعالى تريدون شيئا أزيدكم فيقولون ألم تبيض وجوهناألم تدخلنا الجنة وتنجنا من النار قال فيرفع الحجاب فما أعطوا شيئا أحب إليهم من النظر إلى ربهم عزوجل ثم تلاهذه الآية (للذين أحسنوا الحسنى وزيادة) يعني كله چي جنتيان جنت ته داخل سي نوالله تعالى به ورته ووايي ايا تاسو اراده لري ديو شي چي درزيات ئې كرم نو دوی به ووايي اياتا زموږ مخونه ندي راسپين كړي ايا تا موږ جنت ته نه يو داخل كړي او له اور څخه دي نه يو خلاص كړي نو پورته به كړي الله تعالى پرده(نو وبه كوري دوی خپل رب ته)نو نده وركړل سوی دوی ته يوشي چي محبوب دي وي دوی ته ترنظر ورب خپل ته بياني عليه السلام تلاوت وكړ ددې ايت مباركه(للذين أحسنوا الحسنى وزيادة) يونس يعني هغه كسانو لره چي په دنيا كي ئې نيک عمل كړی وي جنت ده اونورزيادت هم چي ديدارالله تعالى ده

(بِلَا تَشْبِيه وَلَا كَيْفِيَّة وَلَا كَمِيَّة)يعني الله تعالى به په داسي ليدلو سره ليدل كيږي چي هيڅ قسم تشبيه اوخرنكوالى او خومره والى به نوي داځكه چي دالله تعالى رؤية دجهت كميت كيفيت په اعتبار سره له متشابهاتوڅخه ده نو كوم څه چي په نقل ثابت دي موږ هم هغه ثابتووا و له الله تعالى څخه دهغه څه نفي كوو چي عقل ئې له هغه څخه منزه اوپاک بولي

(وَلَايكون بَينه وَبَين خلقه مَسَافَة)مرادله مسافةْ څخه جهت مقابله مكان ده خكه له نفي دمسافي خو اتصال لازميږي او دامراد نده يعني په ليدلو كي دالله تعالى به جهت مقابله مكان نوي بلكه ديدار دالله تعالى په خارق العادة دول سره واقع كيږي

## اختلاف په لبدلو کې دالله تعالی په خوب کې،

هغه خلک چې دالله تعالی د رؤیة اثبات کوي هغوی وايي چې دالله تعالی لیدل په خوب کې محال دي بو له دوی څخه امام الهدی ابومنصور الماتريدي ده حق خيني خولادا هم وايي چې دا دمحققینو مسلک ده دلیل ددې دلی علماء داده چې په خوب کې خیالات او امثال لیدل کیږي او الله جل جلاله له هر قسمه مثل څخه منزه او پاک ده لیکن خیني علماء بیا وايي چې په خوب کې دالله تعالی لیدل ممکن دي خو ببله کوم کیفیة جهت اومقامه اوببله مثله اوخیاله څخه دا دله استدلال کوي چې له خیني متقدمینو علماء څخه نقل سوي دي چې دوی به ویل چې موږ الله جل جلاله په خوب کې ولیدئ

## لبدل دالله تعالی په ویښه،

اولیدل دالله جل جلاله په دنیا کې په ویښهٔ عام متقدمین او متاخرین علماء کرام پر دې باندي چې دا نه واقع کیږي ښايي مراد ددې علماء داوي چې په سترګوسره ممکن ندئ اوپه زړه سره وخیني اخص الخواص لره ممکن ده لکه چې واقع سو همداسي نبي علیه السلام لره لکه چې روایت سوي له عبدالله بن عباس رضي الله تعالی عنهما څخه چې نبي علیه السلام ولیدئ په زړه سره په تفسیر کې ددې قول دالله جل جلاله(مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَأَى) النجم

وَالْإِيمَان هُوَ الْإِقْرَار والتصديق ..........................

او ايمان اقرار ده په ژبه سره او باور ده په زړه سره

## تشريح

(وَالْإِيمَان هُوَ الْإِقْرَار والتصديق)يعني ايمان دبته وايي چي سړی اقرار وکړي په ژبه سره او تصديق وکړي دنبي عليه السلام په زړه سره اجمالا په ټولو هغو امورو کي چي معلوم وي بالضرورة راتګ دنبي عليه السلام په هغو سره له لوري دالله تعالى علامه تفتازاني رحمه الله تعالى وايي په شرح العقائد کي چي همدا کافي ده ددې لپاره چي سړی دايمان راوړلو ذمهٔ واري ورباندي پوره کړي او درجه ئې هم ترايمان تفصيلي ټيټه نده

معنی ددې چي معلوم وي بالضرورة داده چي په هغه امورو کي ئې تصديق وسي چي هرچاته معلوم وي چي دا دين حصه ده استدلال ته ضرورت نه لري لکه وحدانيت دالله تعالى او فرضيت دلمانځه اوحرمت دشرابو او داسي نور يوازي دژبې اقرار ببله تصديق څخه دزړه کفايت نکوي څکه که يوازي اقرار کفايت وکړي نو بيا خو منافقان ټول مؤمنان بلل کيدلای او نه هم يوازي تصديق کفايت کوي څکه که داسي وای نو بيا خو به اهل الکتاب ټول مؤمنان وای اوحال داده چي الله په حق کي دمنافقانو فرمايي(وَاللَّهُ يَشْهَدُ إِنَّ الْمُنَافِقِينَ لَكَاذِبُونَ(١)المنافقون_يعني الله شاهدي ورکوي چي يقينا منافقان دروغ ويونکي دي

اوپه حق کي داهل کتابوفرمايي(الَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ يَعْرِفُونَهُ كَمَا يَعْرِفُونَ أَبْنَاءَهُمْ) الانعام_يعني هغه کسان چي موږ دوی ته کتاب ورکړی ده پېژني دوی پيغمبر داسي لکه څنګه زامن چي پېژني

البته تصديق دايمان داسي رکن ده چي حسن لعينه ده هيڅکله سقوط نه قبلوي او اقرار داسي نده څکه هغه خويا شرط دايمان ده اويارکن ده حسن

لغيره له دي وجه غورزي په حالت کي دعذر او اکراه داخکه چي ژبه ترجماني کوي دزړه نو اقرار دژبي دزړه دتصديق دليل ده وجوداو عدما نو که چيري يوڅوک با وجود دقدرت پراقرار باندي اقرار په بل څه بدل کړي هغه کافر ده البته که عذر موجود وو بيا کافر نده همدبته اشاره سوي په دي قول کي دالله تعالی(مَنْ كَفَرَ بِاللَّهِ مِنْ بَعْدِ إِيمَانِهِ إِلَّا مَنْ أُكْرِهَ وَقَلْبُهُ مُطْمَئِنٌّ بِالْإِيمَانِ وَلَكِنْ مَنْ شَرَحَ بِالْكُفْرِ صَدْرًا فَعَلَيْهِمْ غَضَبٌ مِنَ اللَّهِ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ (١٠٦) النحل_ يعني هغه څوک چي کافر سي په الله ورسته تر ايمان راوړلو بغير له هغه چاچي زور پر وکړل سي اوزړه ئي مطمئن وي په ايمان سره او ليکن هغه څوک چي خلاصه کړي خپله سينه کفر لره نو پر دوی باندي غضب ده له جانبه دالله تعالی او دوی لره لوی عذاب ده

ملاعلي قاري وايي چي دځينو علماء په نبز اقرار معتبر ده په اصل تعريف کي دايمان او دا رايه ده شمس الائمه الحلواني او فخر الاسلام چي اقرار رکن ده خو احتمال دسقوط لري لکه داکراه په حال کي او جمهور محققينو علماء دبته تګ کړئ چي ايمان تصديق ده په زړه سره او اقرار شرط ده لپاره داجراء داحکامو په دنيا کي ځکه تصديق باطني شی ده علامه غواړي نو هغه څوک چي تصديق لري خو اقرار ئي نوي کړي په ژبه سره هغه مؤمن ده په نبز دالله تعالی که څه هم مؤمن نده په احکامو کي ددنيا او که چا اقرار کړی وي په ژبه سره خوتصديق او باور ئي نوي په زړه کي لکه منافق نو هغه ددي بالعکس ده اودا رايه مختاره او غوره ده دابو منصور الماتريدي په نبز

دټولو علماء اجماع ده پر ايمان دهغه چا چي تصديق اوباور لري په زړه سره او داقرار کولو هم اراده لري ليکن يو مانع موجود وي له اقرار کولو ځخه لکه ګونګتوب او يابل داسي. له دي ځخه معلومه سوه چي ايمان يوازي دشهادت کلمه نده لکه کرامبه چي داخبره کوي

## وجه دتقديم داقرار پرتصديق باندي په تعريف کي دايمان

په مخکي کولو کي دامام اعظم رحمه الله تعالى داقرار پر تصديق باندي په تعريف کي د ايمان اشاره ده ودېته چي په خاى کي دښکاره کولو دايمان لو مرنى حيثيت اقرار لري که څه هم اصلي معتبر شى تصديق ده څکه ددنيا احکام تول موقوف دي پراقرار باندي او موږامتياز دمؤمن اوکافر په اقرار سره کوونږي عليه السلام اوصحابه و به قناعت کوئ له مؤمن څخه په کلمه دشهادت اوحکم به ئي کوئ په ايمان دده سره ببله دي چي پوښتنه به ئي کوله له هغه څه څخه چي دده په زړه کي وي

وإيمان أهل السَّمَاء وَالْأَرْض لَايزِيد وَلَاينقص من جِهَة الْمُؤمن به ويَزِيد وينقص من جِهَة اليَقِين والتصديق والمؤمنون مستوون فِي الْإِيمَان والتوحيد متفاضلون فِي الأعْمَال

او ايمان د اهل داسمان او مځكي نه زياتيږي او نه كميږي له جهته دمؤمن به اوزياتيږي اوكميږي له جهته ديقين اوباور او مؤمنان تول سره برابر دي په ايمان اوتوحيد كي يوله بله توپېر اوفرق لري په اعمالوكي

## مسئله دزيادت دايمان اودنقصان

(وإيمان أهل السَّمَاء وَالْأَرْض لَايزِيد وَلَاينقص من جِهَة الْمُؤمن به)يعني ايمان دهغه چاچي اوسيږي په اسمانو كي لكه ملائكي او دهغه چا چي اوسيږي په مځكه كي لكه انبياء اولياء اونور عام مؤمنان كه گناه كار دي اوكه نيک عمله او داسي پېريان نه زياتيږي اونه هم كميږي له جهته دمؤمن به څكه مؤمن به هغه شيان دي چي ايمان راوړل واجب وي پر هغو باندي نو كه يوڅوک پرځينو شيانو ايمان راوړي او پرځينو ئې نه راوړي مثلا ايمان راوړي پر الله تعالى او ملائكو او رسولانو باندي ليكن ايمان نه راوړي پر ورځ داخرت باندي نو داسړى مؤمن نده نو دمؤمن به په اعتبار تول سره برابر دي په ايمان كي

(وَيزِيدوَينقص من جِهَة اليَقِين والتصديق)يعني داصل تصديق په اعتبار زيادت اونقصان نه قبلوي څكه ترتصديق لاندي مرتبه خوگمان اوتردد ده او هغه هيڅ اعتبار نه لري په مقام كي داعتقاد بلكه زيادت او نقصان ديقين په اعتبار قبلوي څكه يقين مختلفي مراتبي لري لكه چي فرمايي الله تعالى(وَإِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ رَبِّ أَرِنِي كَيْفَ تُحْيِ الْمَوْتَى قَالَ أَوَلَمْ تُؤْمِنْ قَالَ بَلَى وَلَكِنْ لِيَطْمَئِنَّ قَلْبِي)البقرة_ يعني اوكله چي وويل ابراهيم عليه السلام اي زماربه راووينه

ماته داچې ته څنګه مړي را ژوندي کوې وې وېل الله تعالى ايا ته ايمان نه لرې پردې باندې ابراهيم عليه السلام ووېل لرم نې خو سوال ددې لپاره کوم چې زما زړه ښه ډاډه سي

امام شافعي رحمه الله تعالى او دده اتباع له اشاعره و ځخه وايي چې ايمان زيادت او نقصان نه قبلوي زموږ له طرفه الزام دوى باندې په دې قول دالله تعالى سره کېږي (أُولَئِكَ كَتَبَ فِي قُلُوبِهِمُ الْإِيمَانَ) المجادلة_يعني دا هغه کسان دي چې الله تعالى ثابت کړى په زړوکي ددوى ايمان. څکه مثبت سوي شي زيادت او نقصان نه قبلوي

او هغه اياتونه چې دلالت کوي پر زيادت دايمان لکه(وَإِذَا تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ آيَاتُهُ زَادَتْهُمْ إِيمَانًا) الانفال_يعني کله چې تلاوت سي دوى باندې ايتونه دکلام دالله تعالى نو ورزيات کړي دوى ته ايمان،حمل کېږي پر معنى ديقين يعني يقين نې زيات سي لکه مخکې چې تېره سوه اويادا حمل کېږي پرهغه چې امام ابوحنيفه رحمه الله تعالى ويلي دي چې دمؤمن به دزيادت په وجه به نې ايمان زيات سي داځکه چې قران به نوى نوى ناز يلېدئ او دوى به ورباندې ايمان راوړئ

او دنبي عليه السلام ددې قول معنى چې کله له ده څخه پوښتنه وسوه په باره کې دزيادت اونقصان دايمان ده ووېل نَعمْ يَزِيدحَتَى يَدْخُلَ صَاحِبُه اَلْجَنةَ وَيَنقُصُ حَتَى يَدْخُلَ صَاحِبُه اَلنارَ)يعني هو ايمان زياتېږي صاحب نې جنت ته داخلېږي او کمېږي صاحب به نې اور ته داخلېږي،داده چې دښو او د نيکو اعمالو په اعتبار سره زياتېږي نوصاحب به يې جنت ته داخلېږي په دخول اولي سره او د بدو اعمالو په خاطر کمېږي نو صاحب به نې جنهم ته داخلېږي په دخول اولي سره او جنت ته به داخلېږي په دخول ثانوي سره ورسته تر تېره ولو دخپلي جزا

(والمؤمنون مستورون فِي الإِيمَان والتوحيد)يعني مؤمنان ټول سره برابردي په اصل ايمان او توحيدکي داځکه چې ايمان عبارت ده له اذعان او باورڅخه اذعان اوباور زيادت اونقصان نه قبلوي نو دا قول ثابت سو چې اصل ايمان زيادت اونقصان نه قبلوي نوکله چې ايمان زيادت اونقصان نه قبلوي نو ټول مؤمنان په ايمان کي سره برابردي ليکن قوة اوضعف قبلوي او دا د متاخرينو علماء مسلک ده له احنافو څخه.همداسي په توحيد کي يعني ټول مؤمنان سره برابردي په دې کي چې هربو وايي چې له الله تعالى سره شريک نسته په الوهية اوربوبية اوخالقية اوداسي نورو صفاتوکي خکه که يوڅوک نفى دشريک کوي په خينو صفاتوکي او په خينو کي بيا نه کوي نو هغه سړی مشرک ده موحد نده نو په توحيد کي زيادت اونقصان نه راځي له دې وجه څخه

(متفاضلون فِي الأَعْمَال)يعني مؤمنان يو له بله فرق لري په اعمالو کي په سبب داختلاف د احوالو داځکه چې اعمال داخل ندي په ايمان کي ولي مخکي تېره سوه چې ايمان په حقيقت کي تصديق ده او ډېر وخت داسي کيدای سي چې پورته دې سي عمل له مؤمن څخه لکه له حائضي څخه لمونځ اوروژه او تصديق هيڅکله نسي پورته کيدای له مؤمن څخه.همداسي دلالت کوي پرمغايرة دايمان اوعمل دا چې په قران اوحديثو کي ډېر خله عطف سوی وی عمل پرايمان باندي او دا خبره پوشيده اوپټه نده پرهغه چا چې ډېر کم ممارسة لري له علم نحو سره چې عطف تقاضاکوي دمغايرة دمعطوف اومعطوف عليه نوداخبره پرڅای ده چې مؤمنان يوله بله په عمل کي تفاضل اوبهتري لري

امام شافعي رحمه الله تعالى عليه وايي چې اعمال صالحه ايمان زياتوي ليکن زموږ له طرفه دليل داده چې الله جل جلاله قران کي وايي(وَمَنْ يَعْمَلْ مِنَ

الصَّالِحَاتِ مِنْ ذَكَرٍ أَوْ أُنثَى وَهُوَ مُؤْمِنٌ) النساء_يعني چاچي عمل وكړ دنبكيو نر وي اوكه ښځه په دې شرط چې مؤمن وي

داځكه چې په دې ايت مباركه كې الله جل جلاله ايمان شرط ګرزولى ده لپاره داعمالو او دا يقيني خبره ده چې شرط غير وي له مشروط ځخه خكه منع ده اشتراط ديوشي دخپل ځان لپاره نو داخبره ثابته سوه چې اعمال غير دي له ايمان ځخه نو ايمان نه زياتيږي په اعمالوسره

والاسلام هُوَ التَّسْلِيم والإنقياد لأوامر الله تَعَالَى فَمن طَرِيق اللُّغَة فرق بَين الْإِسْلَام وَالْإِيمَان وَلَكِن لَايكون إِيمَان بِلَااسلام وَلَايُوجد إِسْلَام بِلَاإِيمَان وهما كالظهر مَعَ الْبَطن وَالدّين اسْم وَاقع على الْإِيمَان وَالْإِسْلَام والشرائع كلهَا

او اسلام تسليمبدل اوغاړه ايښوول دي اوامرو لره دالله تعالی نو دلغة له لاري فرق سته ترمنځ داسلام او ایمان خو نسي کيدای ايمان ببله اسلام څخه او نه موجوديږي اسلام ببله ایمان څخه او دوی دوه داسې دي لکه شااونس او دين اسم ده اطلاق ئې کول کيږي پرايمان اسلام اوټولو شرعي احکامو

## تشریح

(والاسلام هُوَالتَّسْلِيم والإنقيادلأوامر الله تَعَالَى)یعني اسلام دبته ويل کيږي چې يوځوک په ظاهري اوباطني توګه سره دالله جل جلاله اوامروته غاړه کښيږدي اوراضي مې په حکم دالله تعالی په دې سره چې خيني شيان ئې پر ده فرض کړي او خيني ئې ورباندي حرام کړي بغيرله اعتراض کولو پر الله تعالی باندي اوبد ګڼلو داحکامو دده

## دايمان او اسلام فرق دلغت په اعتبار،

(فَمن طَرِيق اللُّغَة فرق بَين الْإِسْلَام وَالْإِيمَان)یعني دلغة له لاري دايمان او اسلام ترمنځ فرق سته څکه ايمان عبارت ده له تصديق څخه دزړه لکه په دې قول کې دالله تعالی(وَمَا أَنتَ بِمُؤْمِنٍ لَنَا)یوسف_یعني ته مصدق اوباور کونکی نه ئې زموږ پر خبره باندي په شان کې ديوسف عليه السلام.او اسلام عبارت ده له تسليمبدلو اوغاړه ښودلوڅخه لکه چې فرمايي الله تعالی(وَلَهُ أَسْلَمَ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ طَوْعًا وَكَرْهًا)ال عمران_یعني غاړه ايښې الله تعالى لره هغه چا چې په اسمانو اومځکه کې دي په خوښه لکه ملائکي اومؤمنان اوپه

زورسره لکه کافران

نو ایمان خاص انقیاد باطني ته ویل کیږي او اسلام بیا انقیاد ظاهري ته دلالت کوي پردې خبره باندې داقول دالله جل جلاله(قَالَتِ الْأَعْرَابُ آمَنَّا قُلْ لَمْ تُؤْمِنُوا وَلَكِنْ قُولُوا أَسْلَمْنَا وَلَمَّا يَدْخُلِ الْإِيمَانُ فِي قُلُوبِكُمْ)الحجرات_یعني صحرایانو خلکو وویل موږ ایمان راوړی ده ته دوی ته ووایه چې تاسو ایمان نده راوړی بلکه تاسي وواياست چې موږ اسلام راوړی ده او ایمان لا تر اوسه ستاسو په زړوکي نده داخل سوی

## دایمان اواسلام تلازم،

(وَلَكِن لَايكون إِيمَان بِلَااسلام)یعني په شرعي اعتبارسره انقیاد باطني چې ایمان ده ببله انقیاد ظاهري چې اسلام ده نسي را تلاي .

(وَلَايُوجد إِسْلَام بِلَاإِيمَان)خکه اسلام دتسلیمبدو او غاړي ښودلو معنی ده او دا راتلای نسي په یوچاکي تر څو تصدیق او باور نوي راغلی دهغه په زړه کي نو ددې تصور نسي وهل کیدلای دشریعت په اعتبار چې یو څوک دې مؤمن وي خو مسلم دې نوي اویا دې مسلم وي خو مؤمن دې نوي

ملاعلي قاري رحمه الله تعالی وايي داجمله دمخکنی جملي لپاره تاکید ده په دې کي اشاره ده وديته چې مخکوالی داسلام پرایمان باندي اویا دایمان پراسلام باندي سره برابردي خکه کله باطني تصدیق مخکي وي ظاهري انقیاد بیا ورسته حاصل سي لکه یهودي یا نصراني چې ایمان راوړي اوکله کله بیا ظاهري انقیاد مخکي وي باطني انقیاد ورسته حاصل سي لکه خیني منافقان چې په اخر کي مؤمنان سول

(وهما كا لظهر مَعَ الْبطن)یعني ایمان اواسلام داسي دي لکه یوشی هیڅکله یو له بل لخخه نسي جلا کید لای لکه شا او نس چې سره لازم دي یو له بله نسي را تلای

(وَالدِّين اسْم وَاقع على الْإِيمَان وَالْإِسْلَام والشرائع كلهَا)يعني پرتولو احكامو معنى دا چې كله دين مطلق ذكرسي نومراد ترې تصديق اقرار او دټولو انبياء احكام دي لكه چې دالله تعالى له دې قوله څخه چې معلوميږي(وَمَنْ يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَنْ يُقْبَلَ مِنْهُ)ال عمران _يعني چاچې طلب كړ بغير له اسلام څخه بل دين نو هيڅكله به څني قبول نكړل سي

په بل خاى كې الله تعالى فرمايي(إِنَّ الدِّينَ عِنْدَ اللَّهِ الْإِسْلَامُ)ال عمران_يعني ببشكه غوره دين په نبز دالله تعالى اسلام ده په بل خاى كې دالله تعالى فرمايي (وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّينِ مِنْ حَرَجٍ)الحج_يعني الله تعالى نده كرزولى پر تاسو باندي مشقت په دين كې په بل خاى كې فرمايي(وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا) المائدة يعني ماستاسو لپاره اسلام ددين په توګه خوښ كړئ

## نه افراط او نه تفريط

په عقيدة الطحاوية كې راځي چې دالله تعالى دين په مځكه او اسمان كې يو دين ده دغلو اوتقصير ترمنځ ده يعني نه افراط په كښې سته او نه هم تفريط. دتشبيه اوتعطيل ترمنځ ده يعني نه دالله تعالى دصفاتو تشبيه وركوي دمخلوق له صفاتوسره لكه مشبهه اونه ئې په صفاتوكي تعطيل كوي لكه معطله بلكه دالله تعالى ټول هغه صفات چې په قران كريم كې ئې دځان لپاره ثابت كړي يا رسول الله صلى الله عليه وسلم بيان كړي هغه ټول ثابت بولي بلاكيف اوځرنكه چې دده ذات سره لائق وي. دجبر او قدر ترمنځ ده يعني نه داسي لكه جبريه چې وايي چې بنده مجبور ده پراعمالوباندي هيڅ اختيار نه لري په خپلو اعمالوكي اونه داسي لكه قدريه چې وايي چې بنده خالق ده دخپلو افعالو.

دحضرت ابو هريرة رضي الله تعالى عنه څخه روايت ده چې نبي عليه السلام و فرمايل(انامعاشر الانبياء ديلناواحد)يعني موږ دانبياو دله يوو زموږ دين يو

ده يعني ددين اصل اوبنياد مو يو ده چې توحيدده اوشرائع او احكام مو سره جلا جلا دي لکه چې فرمايي الله تعالى(لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنكُمْ شِرْعَةً وَمِنْهَاجًا) المائدة يعني موږ دهرقوم لپاره مقرر كړئ ده شريعت اولار

نعرِف الله تعَالَى حق معْرفَته كَمَا وصف نفسه فِي كِتَابه بِجَمِيع صِفَاته

موږ پېژنو الله جل جلاله په حق معرفت اوپېژندګلوي سره لکه څنګه چې الله تعالی ستایلی ده خپل خان په خپل کتاب کې په تولو صفاتوسره

## تشریح

(نعرِف الله تعَالَى حق معْرفَته)یعني موږ پېژنو الله تعالی په حق معرفت او پېژندګلوي سره دبنده دطاقت اوقدرت په اندازه سره او پېژندل دالله تعالی په اعتبار دکنه دذات دده او په اعتبار داحاطې پر تولو صفاتو دده غیر مقدور ده بنده لره

(كَمَا وصف نَفسه فِي كِتَابه بِجَمِيع صِفَاته)یعني پېژنونې په ثابتولو دهغه صفاتو وجودیه و چې الله تعالی ثابت کړي خپل خان ته په قران کې اوپه نفی کولو دهغه صفاتو سلبیه و چې الله تعالی نفی کړي له خپل خان څخه په قران کې په دې قول کې دامام اعظم رحمه الله تعالی دلیل سته پر دې چې اطلاق دنفس پر ذات دالله تعالی جائزده.او دذات داطلاق په باره کې تحقیق داده چې ډېرعلماء په خپلو عباراتو کې ذات اوصفات یوخای سره ذکر کوي دعبد الله بن عباس رضي الله تعالی عنه څخه راخي په یو اثرکې(تفكروا في كل شيء ولا تفكروا في ذات الله)یعني په هرشي کې فکر وهئ خو دالله تعالی په ذات کې فکر مه وهئ

## دملاعلي قاري رد پرسیوطي رح باندي

امام سیوطي رحمه الله تعالی وایي دذات اطلاق پر الله باندې ثابت ده دبخاري په هغه روایت سره چې دحضرت خبیب رضي الله تعالی عنه په قصه کې ده چې ورسته به راسي لیکن ملا علي قاري وایي چې دا استدلال په دوو وجهو کمزوری ده یو وجه داده چې دا دصحابي قول ده دوهمه وجه داده چې داصریح نده په مدعی کې بلکه ښکاره داده چې مراد له في ذات الاله څخه في

سبيل الله ده ځکه کله چې خبيب مبارک کفارو له حرم څخه ددې لپاره وايستئ چې قتل ئې کړي نو هغه مبارک ورته وويل ماپرېږدئ چې زه دوه رکعته لمونځ وکړم ورسته ئې بيادا شعرونه وويل

ولست أبالي حين أقتل مسلما.....على أي شق كان لله مصرعي

وذلك في ذات الإله وإن يشأ.....يبارك على أوصال شلو ممزع

يعني باک نکوم کله چې وژل کيږم مسلمان پر هر اړخ چې وي په لارکي دالله غورخيدل زما

او داټول په لارکي دالله کله دالله تعالى خوښه سي نوبرکت به کښيږدي پراندامو دبدن پرېکړل سوي

## دحقيقت اطلاق پر الله تعالى باندي.

ابن السبکي په جمع الجوامع کي وايي چې دالله جل جلاله حقيقت له نورو ټولو حقائقو څخه مخالف اوجلا ده ابن الزملکاني دده پر دې کلام رد کړی او وايي چې اطلاق دحقيقت پر الله جل جلاله باندي منع او ناروا ده ابن جماعة ئې دليل داسي ذکر کوي چې په قران کي پر الله تعالى باندي اطلاق دحقيقت هيڅ ځای نده سوی

دلته يوه شبهه پيداکيږي هغه دا چې دامام اعظم رحمه الله تعالى دا قول (نَعْرِفُ الله تَعَالَى حق مَعْرِفَته) تضاد اوټکر لري له دې قول سره(ماعرفناک حق معرفتک)يعني موږ نه يې پېژندلی ته په حقه پېژندنه سره .

ددې شبهې جواب داده چې داقول بناده پردې باندي چې ادراک دذات دالله تعالى او احاطه پرټولو صفاتو دده دمخلوق په طاقت کي نده لکه چې فرمايي (لَا تُدْرِكُهُ الْأَبْصَارُ) الانعام۔ يعني د الله تعالى دذات ادراک سترګي نسي کولای په بل ځای کي فرمايي (وَلَا يُحِيطُونَ بِهِ عِلْمًا)طه۔يعني دوی احاطه نسي کولای پرذات دالله تعالى په ځهل علم سره

وَلَيْسَ يقدرأحَدٌ ان يعبد الله حق عِبَادَته كَمَاهُوَ أهل لَهُ وَلكنه يعبده بأمْرِه كَمَا امَرَهُ بكتابه وَسنة رَسُوله ......................

اوقدرت نلري هيڅوک ددې چې عبادت دي وکړي دالله تعالى داسي عبادت څرنګه چې ئې الله تعالى اهل او لائق ده بلکه عبادت کوي بنده دالله تعالى په امر دده سره څرنګه چې ئې امر کړی په خپل کتاب اوطريقي دپيغمبر سره

هيڅوک ددې طاقت نلرى چې دالله تعالى کما حقه عبادت وکړي.

(وَلَيْسَ يقدرأحَدٌ ان يعبد الله حق عِبَادَته كَمَاهُوَ أهل لَهُ)يعني هيڅوک دا توان اوطاقت نلري چې دالله جل جلاله داسي عبادت وکړي لکه څرنګه چې ئې الله تعالى مستحق ده ځکه الله جل جلاله موږ ته وجود راکړ ورسته ترهغه چې موږ معدوم وو بيا ئې رزق راکړ له خپلو خزانو څخه او عقل ېې راکړ چې موږ حق او باطل سره په جلاکړو او موږته ئې هدايت کړ دهغې لاري چې هيڅکله به ئې سالک په خطر کي نه لوېږي او موږ ئې ساتلي يوو له شره دېېريانو او داسي نور نعمتونه دالله تعالى پرموږ باندي چې موږ ئې دشميرلو توان هم نلرو دا خولا څه چې شکر يې اداکړو او کماحقه عبادت ئې وکړو لکه چې فرمايي الله تعالى(وَإِنْ تَعُدُّوا نِعْمَتَ اللَّهِ لَا تُحْصُوهَا)ابراهيم_يعني که تاسي وغواړئ چې دالله جل جلاله نعمتونه وشميرئ نو شمار به ئې نکړئ

له دې وجهې څخه خيني خلک وايي چې دا آيت(يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِ)ال عمران يعني اي مؤمنانو له الله تعالى څخه داسي وېېرېږئ لکه څرنګه چې له هغه څخه دېېريدو حق دی، منسوخ ده په دې ايت سره(فَاتَّقُوا اللَّهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ)التغابن_ يعني وېېرېږئ له الله تعالى څخه څو نه چې ستا سو طاقت وي

ځکه هغه سي تقوا کول چې څنګه دالله جل جلاله حق وي له هغې څخه دالله تعالى مختاره او غوره بندګان هم عاجزه دي لکه څنګه چې ددې تقوا

نبي علیه السلام تفسیر کړی(هو أن يُطاعَ ولا يعصى ويُذكرَ ولا يُنسَى ويُشكَرَ ولا يُكفَرَ) یعني تقوا داده چې دالله تعالی اطاعت وسي اونافرماني ئې ونسي اوذکر ئې وسيَ او هیر نسي اوشکر ئې اداء سي ناشکري ئې ونسي

(وَلكنه يعبده بأمْرِه كَمَا امَرَهُ بكتابه وَسنةرَسُوله)یعني هر بنده دالله تعالی له حکم سره سم دالله تعالی عبادت کوي لکه څنګه چې دته امر سوی په قران او حدیثو کي درسول الله صلی الله علیه وسلم لیکن په داسي توګه چې په پوره طریقه دالله تعالی له حق اداء کولو څخه عاجزه ده خکه ممکن نده هیچا ته هغه که نبي وي اوکه ولي او که عام سړی چې د الله تعالی دي داسي عبادت وکړي چې څنګه دالله تعالی حق وي

له دې وجهې څخه خپني عارفین وايي چې که الله تعالی د(إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَستَعِينُ) امر نه وای ورته کړی نوده به هیڅکله دا ایت نوای تلاوت کړی خکه په اخلاص درېدل په عبادت کي دالله تعالی او تخصیص دالله تعالی په استعانة سره په عبادت کي ناشونی کار ده

همدامي به نبي علیه السلام همیشه له عبادت څخه ورسته استغفاروایه او بخښنه به ئې غوښتله او دا دېته اشاره ده چې ګویا نبي علیه السلام دالله جل جلا له دبشپړ اطاعت له کولو څخه مقصر وو

وَيَسْتَوِي الْمُؤْمِنُونَ كلهم فِي الْمعرفَةوَالْيَقِين والتوكل والمحبة والرضاءوَالْخَوف والرجاء وَالْإِيمَان ويتفاوتون فِيمَا دون الْإِيمَان فِي ذَلِك كُله

اوبرابر دي ټول مؤمنان په معرفت يقين توكل محبت رضاء ببره اميد او ايمان كي اوتفاوت لري له ايمانه بغير په دي نورو ټولو امورو كي

## دشارحينو اختلاف په تفسير كي دقول دامام صاحب.

(وَيَسْتَوِي الْمُؤْمِنُونَ كلهم)دلته دوې خبري دپام وردي يوه دا چي داستواء په محل كي دشارحينو اختلاف ده ځيني ئې تفسير داسي كوي برابر دي ټول مؤمنان په اصل اونفس معرفت كي دالله تعالى الخ اوځيني ئې بيا داسي كوي ټول مؤمنان برابردي په وجوب كي يعني پر هر يوه باندي له مؤمنانو واجب ده پېژندل دالله تعالى الخ

## دكاتبانوسهوه

دوهمه خبر داچي شيخ عبد القادر دابوالمنتهي په حاشية كي ليكلى دي چي دامام اعظم رحمه الله تعالى په كلام كي دلته تعقيد راغلى له طرفه دكاتبانو څكه ثابتوي په اول كي دكلام استواء دمؤمنانو په دې امورو كي او په اخر كي دكلام بيا ثابتوي تفاوت ددوی په دې امورو كي بغير له ايمان څخه اوكه استواء د نفس امورو په اعتبار او تفاوت دقوة اوضعف په اعتبار واخستل شي نو بيا څو استثناء دايمان كومه معنی نلري ددې ځاى دزيات تحقيق لپاره بايد رجوع وكړل شي وابوالمنتهي ته

(فِي الْمعرفَة وَالْيَقِين)يعني برابردي په نفس پېژندلو كي دالله تعالى او په نفس يقين كي ددين په معامله كي

## ديقين درې مراتب

يوه سه ورو ره يقين هغه اعتقاد ته ويل كيږي چي جازم ثابت مطابق وي له

واقع سره او دا دري مراتبې لري يو هغه يقين ده چې حاصل سي له دليل څخه دېته علم اليقين ويل کيږي دوهم هغه يقين ده چې حاصل سي له ليدلو څخه دېته عين اليقين ويل کيږي دريم هغه يقين ده چې حاصل سي له دوارو دېته حق القين ويل کيږي

(والتوكل)يعني په دې کېنې چې دټولو توکل پر الله تعالی باندي ده او يا ټول مکلف دي په دي چې توکل وکړي پرالله تعالی باندي لکه چې فرمايي الله تعالی(وَعَلَى اللَّهِ فَتَوَكَّلُوا إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ (٢٣) المائدة يعني خاص پر الله تعالی باندي توکل وکړئ که چېري تاسي مؤمنان ياست

(والمحبة)يعني په دې کېنې چې هر يو دالله او دهغه درسول سره محبت لري او يا هر يو مکلف ده په دي سره چې محبت وکړي دالله تعالی او دهغه درسول سره لکه چې فرمايي (وَالَّذِينَ آمَنُوا أَشَدُّ حُبًّا لِلَّهِ)البقرة_يعني هغه کسان چې ايمان ئې راوړی ده سخت محبت کوونکی دي له الله تعالی سره

حديث کي راځي(لا يؤمن أحدكم حتى أكون أحب إليه من والده وولده والناس أجمعين) يعني کامل مؤمن نسي کيدلای يوله تاسو ترڅو چې زه ورته محبوب نه سم دده تر پلار اولاد او تر ټولو خلکو

(والرضاء)يعني په دې کېنې چې هر يو راضي ده په تقدير اوقضاء دالله جل جلاله اويا هر يو مکلف ده په دي سره چې راضي سي په تقدير او فيصله دالله تعالی

## دخوف اورجاء تحقيق

(وَالْخَوْف)يعني په دې کېنې چې هر يو ډېريږي له غضب اوعذاب څخه دالله تعالی او يا هر يو مکلف ده چې وډېريږي له غضب اوعذاب څخه دالله تعالی لکه چې وايي الله تعالی (يَدْعُونَ رَبَّهُمْ خَوْفًا وَطَمَعًا)السجدة_يعني بولي خپل رب په ډېري اوطمعې سره

(والرجاء)یعني په دې کښې چې تول امید لري وثواب اورضاء ته دالله تعالی اوبا په دې کښې چې تول مکلف دې چې امید ولري وثواب اوعفو ته دالله تعالی ملا علي قاري رحمه الله تعالی وایي چې د الله تعالی له عذابه ببریدل او درحمت ئې امید درلودل پر بنده لازم دي ځکه الله تعالی فرمایي(أَمَّنْ هُوَ قَانِتٌ آنَاءَ اللَّيْلِ سَاجِدًا وَقَائِمًا يَحْذَرُ الْآخِرَةَ وَيَرْجُو رَحْمَةَ رَبِّهِ)الزمر_یعني(ایا کفار به ښه وي) اوکه هغه څوک چې اطاعت کوي دشپې په ساعتونو کي سجده کوونکی اوقیام کوونکی وي او ببرېږي له اخرت څخه او امید لري ورحمت ته درب خپل

دخوف اورجاء ترمنځ تلازم سته ځکه خوف چې ببله رجاء وي هغه ته قنوط ویل کیږي او رجاء چې ببله خوف څخه وي هغي ته امن یعني بېغمي ویل کیږي. ښه خوف هغه ده چې دبنده او ګناه ترمنځ حائل ولوېږي او ښه رجاء هغه ده چې بنده یو نیک عمل وکړي اوبیا داطمع وکړي چې الله تعالی به ئې ثواب راکړي اوباګناه وکړي بیا توبه وباسي له ګناه او دا امید ولري چې الله تعالی به ئې ګناه وبخښي. بده اودروغجنه رجاءهغه ده چې بنده پرته له دې چې نیک عمل وکړي همیشه ګناوې کوي او توبه نه باسي الله تعالی ته اوبیا هم دالله تعالی رحمت ته امید لري

ابوعلي الروذباري رحمه الله تعالی وایي چې خوف او رجاء داسي دي لکه ده یو مرغه دوه وزره که چیرې دواړه برابر وو نو مرغه هم برابر وي او الوتنه هم کولاسي او که په یوه کې نقص راغلی نو په مرغه کې نقص راځي او که دواړه وزره پرمغ ولاړسي او ختم سي نو مرغه دمرګ حد ته رسیږي دده مبارک کلام دحضرت عمر رضي الله تعالی عنه له هغه کلام سره موافق ده چې وایي چې که دقیامت په ورځ نعره وسوه چې یو سړی به جنت ته داخلیږي نو زه به دا

امید لرم چې دغه به زه یم او که نعره وسوه چې یوسړی به جهنم ته داخلیږي نو زه به بېربېږم چې دا زه یم

بعضې علماء بیا وايي چې رجاء باید غالبه وي پر خوف باندي ځکه په حدیث قدسي کي راځي(أنا عند ظن عبدي بي فليظن بي ما شاء)یعني زه دخپل بنده دګمان سره موافق کار کوم چې پر ما ئې کړی وي نو چې دده خوښه وي هغه ډول ګمان دي وکړي پرماباندي بعضې علماءبیا وايي چې دخواني اوصحت په وخت کي باید خوف غالبه وي او دلوي والی اومرض په وخت کي باید رجاء او امید غالبه وي ځکه نبي علیه السلام تر خپل وفات دري ورځي مخکې وویل(لا يموتن أحدكم إلا وهو يحسن الظن بالله)یعني ندي مري یو له تاسو مګر په دامي حال کي چې ښه ګمان ولري پر الله تعالی باندي

(وَالْإِيمَان)یعني ټول مؤمنان سره برابر دي په نفس ایمان کي چې اذعان اوباور کول دي او یا په مکلفیت کي په ایمان سره پر ذات اوصفاتو باندي

(ويتفاوتون فِيمَا دون الْإِيمَان فِي ذَلِك كُله)یعني له ایمان پرته په دي نورو ټولو کي یو له بله تفاوت اوفرق لري ځکه معرفت یقین توکل محبت رضاء ببره امید دخاص اوکامل افرادو ددې امة زیات او قوي دي پر معرفت توکل یقین محبت رضاء ببره امید دعامو خلکو ددې امة

وَاللهُ تَعَالَى متفضل على عباده عَادل قد يُعطي من الثَّوَاب أَضْعَاف مَا يستوجبه العَبْد تفضلا مِنْهُ وَقد يُعَاقب على الذَّنب عدلا مِنْهُ وَقد يعفو فضلا مِنْهُ

اوالله تعالی فضل کوونکی ده پرخپلو بندګانو عدل کوونکی ده ورکوي الله تعالی ثواب څو چنده بالا پر هغه چي بنده ئي مستحق وي دخپل احسان په وجه او کله عذاب ورکوي پر ګناه باندي او دخپل عدل په وجه او کله بیادګناه بخشه کوي دخپل فضل په وجه

تشریح

(وَاللهُ تَعَالَى متفضل على عباده)یعني الله جل جلاله احسان کوونکی ده پر خپلو بندګانو باندي لکه چي وایي الله تعالی(إِنَّ اللَّهَ لَذُو فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ)البقرة یعني ببشکه الله تعالی خاوند دفضل او مهرباني ده پر خلګو باندي .

(عَادل)یعني الله جل جلاله عدل کوونکی ده له خپلو بندګانوسره څکه الله تعالی فرمایي(وَمَارَبُّكَ بِظَلَّامٍ لِلْعَبِيدِ(٤٦)فصلت یعني نده ستا رب ظلم کوونکی پر خپلو بندګانو

(قديُعطي من الثَّوَاب أَضْعَاف مَايستوجبه العَبْدتفضلامِنْهُ)یعني ورکوي الله جل جلاله بنده ته پرعبادت باندي دونه قدر ثواب چي دبنده تر استحقاق بالاوي چي دا نو دالله جل جلاله فضل او احسان ده پر خپل باندي څکه بنده هیڅ استحقاقي ذاتي نلري پر الله جل جلاله باندي داجر او ثواب بلکه دامحض تفضل ده دالله تعالی پر ده باندي لکه چي فرمایي(وَاللَّهُ يُضَاعِفُ لِمَنْ يَشَاءُ) البقرة_یعني الله تعالی چي دچا لپاره خوښه سي دوه چنده ثواب ورکوي (وَقد يُعَاقب على الذَّنب عدلا مِنْهُ)یعني الله جل جلاله ورکوي بنده ته دونه قدر عذاب چي دی ئي مستحق وي چي دانو دالله تعالی عدل ده څکه داتصرف ده په خپل ملک کي اوظلم دېته ویل کیږي چي یو څوک دبل چا په ملک تصرف

وکړي الله تعالی فرمايي په باره کي دثواب اوعذاب(مَنْ جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا وَمَنْ جَاءَ بِالسَّيِّئَةِ فَلَايُجْزَى إِلَّا مِثْلَهَا وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ(۱٦۰) الانعام يعني چي څوک راتک وکړي په نيکی سره نو هغه لره به لس چنده ثواب وي او څوک چي راتک وکړي په بدی سره نو جزاء به نه ورکول کيږي مګر په اندازه دبدی او دوی باندي به ظلم نه کول کيږي)په ورکولو دزيات عذاب پرمقدار دګناوو ددوی اويا په کمولو دثواب

خلاصه دا چي الله جل جلاله دبنده دنيکواعمالو بدله دوه چنده کوي په خپل فضل او مهربانی سره اوجزاء دګناه په مقدار دګناه ورکوي په خپل عدل سره

(وَقَديعفُو فضلا مِنْهُ)يعني کله کله الله تعالی بخښنه کوي بنده ته دګناه په خپل فضل سره هغه که لويه ګناه وي اوکه وره په توبه دبنده اويا ببله توبي لکه چي فرمايي (وَهُوَ الَّذِي يَقْبَلُ التَّوْبَةَ عَنْ عِبَادِهِ وَيَعْفُو عَنِ السَّيِّئَاتِ) الشورى يعني الله هغه ذات ده چي قبلوي توبه له خپلو بندګانو څخه اوبخښنه کوي دګناوو)ظاهر داده چي عفوه غير مشروط ده په توبه سره نو به ښه تقابل د توبي دقبليدو او بخښي ترمنځ راسي

لنډه دا چي زياتوب په بدله کي دنيکی تر لس چنده پوري دعامو خلکو لپاره ده او تر لس چنده زيات بيا خاص دي چا چا لپاره وي خودا ټول محض فضل او خالص رحمت دالله تعالی ده او ډير واري داسي وي چي زيادت دثواب دعبادت کوونکی تر حال او اخلاص پوري تعلق لري

## دملاعلي قاري رد پر قاضي ابي العز باندي.

ملاعلي قاري رحمه الله تعالی وايي چي دعقيدة الطحاوية دشارح داخبره صحي نده چي وايي که دوه کسان په عبادت کي سره برابر وو الله جل جلاله داسي نکوي چي يوه ته تر بل ډير ثواب ورکړي اوداسي هم نکوي چي دوه کسان په

ګناه کولو کي سره برابر وي الله تعالی دي يوه ته بخښنه وکړي اوبل ته دي عذاب ورکړي ځکه فرق نسته په فضل اوعفوه کي دالله جل جلاله داخبره ځکه غلطه ده چي دقران او حديث سره مخالفه ده او حکم کول دي پر الله جل جلاله باندي په مقام کي دارادې اومشيئة اوخپله الله تعالی وايي(قُلْ إِنَّ الْفَضْلَ بِيَدِ اللَّهِ يُؤْتِيهِ مَنْ يَشَاءُ) ال عمران_يعني ورته ووايه اي پيغمبره چي فضل او لورونه دالله تعالی په واک کښي ده ورکوي ئې هغه چا ته چي خوښه ئې سي

وشفاعة الْأَنبِيَاء عَلَيهِم السَّلَام حق وشفاعة النَّبِي صلى الله عَلَيهِ وَسلم للْمُؤمنِينَ المذنبين وَلأهل الْكَبَائِر مِنْهُم المستوجبين الْعقَاب حق ثَابت

او شفاعت دانبياء عليهم الصلوة السلام حق ده او شفاعت دنبي صلى الله عليه وسلم لپاره دمؤمنانو چې ګناه ګاران وي اولپاره دهغو چې غټې ګناوي ئې کړي وي له مؤمنانو چې مستحق وي دعذاب حق ده

## دانبياءعليهم السلام دشفاعت بيان.

(وشفاعة الْأَنبِيَاء عَلَيهِم السَّلَام حق)يعني شفاعت دانبياء عليهم الصلوة السلام دخپلو امتونو لپاره حق ده

(وشفاعة النَّبِي صلى الله عَلَيهِ وَسلم للْمُؤمنِينَ المذنبين وَلأهل الْكَبَائِر مِنْهُم المستوجبين الْعقَاب حق ثَابت)يعني سپارښت دنبي عليه السلام دهغو مؤمنانو لپاره چې وړې ګناوي ئې کړي وي همدامي دهغو لپاره چې غټې ګناوي ئې کړي وي مستحق دعذاب وي حق او ثابت ده په قران او حديث سره ورسته تر اجازې دالله جل جلاله لکه چې فرمايي(مَنْ ذَا الَّذِي يَشْفَعُ عِنْدَهُ إِلَّا بِإِذْنِهِ) البقرة يعني څوک ده چې شفاعت دي وکړي په وړاندې دالله تعالى بغير له اجازې ددهٔ په بل ځای کې الله تعالى فرمايي (فَمَا تَنْفَعُهُمْ شَفَاعَةُ الشَّافِعِينَ (٤٨) المدثر يعني هيڅ ګټه به نه ورسوي دوی يعني کفاروته دسپارښت کوونکو سپارښت) له دې ايت څخه معلوميږي چې مؤمنانو ته شفاعت ګټه رسوي. په حديث کې راځي(شَفَاعَتِي لِأَهْلِ الْكَبَائِرِ مِنْ أُمَّتِي)يعني زما شفاعت به دهغو خلکو لپاره وي زما له امت څخه چې غټې ګناوي يې کړي وي

همدامي شفاعت دملائکوحق ده لکه چې الله تعالى فرمايي(يَوْمَ يَقُومُ الرُّوحُ وَالْمَلَائِكَةُ صَفًّا لَا يَتَكَلَّمُونَ إِلَّا مَنْ أَذِنَ لَهُ الرَّحْمَنُ وَقَالَ صَوَابًا(٣٨)النبأ_يعني په هغه ورځ چې جبرائيل او نورې پرښتې و دريږي صف جوړې به نکوي هيڅوک

بغير له هغه چاچي الله تعالى ورته اجازه کړي وي او وابي ثواب او حقه خبر همدامي شفاعت د علماءاولياؤ شهيدانو او دامي نورو حق ده حديث کي راځي(لَيَدْخُلَنَّ الْجَنَّةَ بِشَفَاعَةِ رَجُلٌ مِنْ أُمَّتِي أَكْثَرَ مِنْ بَنِي تَمِيمٍ)يعني داخليږي به جنت ته په سپارښت دېوه سړي چي زما له امت څخه به وي دونه خلک چي د بني تميم قبيلي تر خلکو به ډيروي

وَوزن الْأَعْمَال بالميزان يَوْم الْقِيَامَة حق وحوض النَّبِي عَلَيْهِ الصَّلَاة وَالسَّلَام حق

او تلل داعمالو په ترازوسره په ورخ دقيامت حق ده اوحوض دنبي عليه الصلوة والسلام حق ده

## تشريح

(وَوزن الْأَعْمَال بالميزان يَوْم الْقِيَامَة حق)يعني داعمالو تلل په قيامت کي په ترازوسره چي دوې پلې به لري او ژبه به لري حق ده لکه چي الله جل جلاله فرمايي(وَالْوَزْنُ يَوْمَئِذٍ الْحَقُّ فَمَنْ ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ(٨)وَمَنْ خَفَّتْ مَوَازِينُهُ فَأُولَئِكَ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنْفُسَهُمْ بِمَا كَانُوا بِآيَاتِنَا يَظْلِمُونَ(٩) الاعراف يعني داعمالو تلل په ورخ دقيامت حق ده نو هغه څوک چي دنيکی تله ئې درنه سي پس نو هغه خلک فلاح مندونکی دي او هغه څوک چي دنيکی تله ئې سپکه سي نو دا هغه کسان دي چي خپل ځانونه ئې تاوانيان کري دي په سبب ددې چي ظلمان وو زموږ پر آياتوباندي يعني انکارکوونکی وو

### دملاعلي قاري رد پر امام غزالی اوقرطبي باندي

امام غزالي اوامام قرطبي رحمهماالله تعالى وايي چي تول به دهرچا لپاره نوي.اويا زره(۷۰۰۰۰) کسان به ببله حساب جنت ته ځي دهغوی به حساب نوي او نه به هم عمل نامې نيسي ملاعلي قاري وايي چي ددوی داخبره په ظاهره دقران له تقسيم سره مخالفه ده

امام اعظم رحمه الله تعالى په کتاب الوصية کي وايي چي همداسي ويل دعمل نامې حق ده لکه چي الله جل جلاله فرمايي(اقْرَأْ كِتَابَكَ كَفَى بِنَفْسِكَ الْيَوْمَ عَلَيْكَ حَسِيبًا(١٤) الاسراء_يعني ورته وبه ويل سي) چي ووايه خپله عمل نامه نن دخپل حساب لپاره ته په خپله کافي يې

## دحوض كوثربيان،

(وحوض النبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام حق)يعني دا حق ده چې الله جل جلاله نبي عليه السلام ته حوض ورکړي او له هغه حوض څخه به دده امت اوبه چښي لکه چې فرمايي الله تعالى إِنَّا أَعْطَيْنَاكَ الْكَوْثَرَ (١)الكوثر_يعني ببشکه موږ تاته کوثر درکړی. څکه جمهور مفسرين دکوثر تفسير په حوض اوبا بياله سره کوي اوتضاد نسته ددې دوو خبرو ترمنځ څکه بياله په جنت کې وي اوحوض به په ميدان کې دقيامت البته په دې کې اختلاف ده چې حوض تر صراط مخکې وي او که ورسته وهو الاقرب

امام قرطبي رحمه الله تعالى وايي چې دا دوه حوضه دي يو تر صراط او ميزان مخکې ده پر اصح قول باندې څکه خلک له قبرو څخه تږي را وزي نو هغوی به تر صراط او ميزان مخکې وحوض ته ورځي دې دواړو ته کوثر ويل کيږي

دامام ترمذي په روايت کې راځي چې نبي عليه السلام وفرمايل(إن لكل نبي حوضا وإنهم يتباهون أيهم أكثر واردة وإني أرجو أن أكون أكثرهم واردة)يعني دقيامت په ورځ دهر نبي لپاره حوض وي او دوی به يو له بله په دې فخر کوي چې دچا حوض ته ډير خلک ورځي او زه اميد لرم چې تر ټولو به زما حوض ته خلک ډير وارديږي

ملاعلي قاري وايي چې څه بالا ديرشوصحابه کرامو دحديث دحوض روايت کړی او قريبه ده چې حد دتواتر ته ورسيږي.حديث کې راځي(حوضي في الجنة مسيرة شهر وزواياه سواء ماؤه ابيض من اللبن وريحه اطيب من المسك وطعمه الذ واحلى من العسل وابرد من الثلج والين من الزبد وحافتاه من الزبرجد واوانيه من الفضة وكيزانه كنجوم السماء من شرب منه لايظمأ بعدها ابدا) يعني زما حوض به په جنت کې دېوي مياشتې د تګ په اندازه

مسافه لري كونجان ئې سره برابردي اوبه ئې ترشيدو سپينې دي اوبوى ئې دمشكو تر بوى زيات ده اوخوند ئې ترعسلو لاخوږ ده او تر واوري يخې دي او تركوچو نرمى دي او غاړې ئې له زبرجدو دي او لوښې ئې دسپينو زرو دي او كوزې ئې داسمان دستورو پشان ډيرې او څلانده دي كه چا وڅښلې بيا هيڅكله تږى نسي

وَالْقصاص فِيمَا بَيْنَ الْخُصُوم بِالْحَسَنَاتِ يَوْم الْقِيَامَة حق وَإِن لم تكن لَهُم الْحَسَنَات فَطرح السَّيِّئَات عَلَيْهِم حق جَائِز

اوقصاص ترمايين ددښمنانو په نېکيوسره په ورځ دقيامت حق ده اوکه دوی لره نېکی نوي نوبيا اچول د بديو پر دوی حق اوجائز ده

## ددښمنانو ترمنځ به قصاص په نېکيو وي.

(وَالْقصاص فِيمَا بَيْنَ الْخُصُوم بِالْحَسَنَاتِ يَوْم الْقِيَامَة حق)يعني دانسانانو ترمنځ چې په دنيا کې کوم ظلم اوتجاوزيو پر بل سوی وي دهغو قصاص او بدله به په ورځ دقيامت په نېکيو سره کيږي په داسي طريقه چې دظالم نېکی به الله تعالی ومظلوم ته ورکوي او داقصاص به خکه په نېکيوسره وي چې هلته دراهم او دنانير نسته او نه هم کومه نفعه لري .

(وَإِن لم تكن لَهُم الْحَسَنَات فَطرح السَّيِّئَات عَلَيْهِم حق جَائِز)يعني که چيري بيا ظالمانو نېکی نه درلودي يائې پرمخ نېکی نوي کړي او يا خو ئې نېکی کړي وي ليکن هغه ټولې په بدله اوقصاص کې ختم سي لوجهې دديرو مظالمو دده نو بيا به د مظلوم ګناوي اچول کيږي پر ظالم باندي

حديث کې راځي نبي عليه السلام وفرمايل وخپلو صحابه کرامو ته(اتدرون من المفلس قالوا المفلس فينا من لا درهم له ولا متاع قال ان المفلس من أمتي من يأتي يوم القيامة بصلاة وصيام وزكاة ويأتي قد شتم هذا وقذف هذا وأكل مال هذا وسفك دم هذا وضرب هذا فيقضي هذا من حسناته وهذا من حسناته فإن فنيت حسناته قبل أن يقضي ما عليه أخذ من خطاياهم فطرحت عليه ثم طرح في النار)يعني ايا تاسو خبر ياست په دې چې مفلس څوک ده صحابه کرامو ورته وويل په موږ کې مفلس هغه څوک ده چې نه درهم لري او نه هم سامان نبي عليه السلام وفرمايل چې مفلس زما له امت څخه هغه څوک ده چې په ورځ دقيامت راښکاره وکړي په لمنځو او روژو او زکاتو

سره او راسي په داسي حال کي چي يوه ته ئې ښکنځل کړي وي او پر يوه ئې تهمت ويلئ وي او ديوه ئې مال خوړلی وي او ديوه ئې وينې توی کړي وي اوبو ئې وهلی وي نو وربه کول سي يوه ته له نېکيو دده يوځه اوبل ته له نېکيو دده که چيري ئې نيکی تمامي سوې مخکي تردې چي اداءکړل سي هغه حقوق چي پر ده باندي دي نو به راوخستل سي ګناوي دمظلومانو او وبه غورزول سي پر ده باندي او بيابه دی واچول سي وجهنم ته

همداسي به الله جل جلاله له انسانانو بغير نور حيوانات هم را پاځوي لکه څنګه چي الله تعالی فرمايې(وَمَا مِنْ دَابَّةٍ فِي الْأَرْضِ وَلَا طَائِرٍ يَطِيرُ بِجَنَاحَيْهِ إِلَّا أُمَمٌ أَمْثَالُكُمْ مَا فَرَّطْنَا فِي الْكِتَابِ مِنْ شَيْءٍ ثُمَّ إِلَى رَبِّهِمْ يُحْشَرُونَ(٣٨)الانعام_ يعني نسته هيڅ يو خوځنده شی په مځکه کي او نه يو مرغه چي الوزي په خپلو دوارو وزرو سره مګر امتونه دي ستاسو په شان موږ نده پرېښی هيڅ شی په کتاب کي بيا به دوی خپل رب ته پاځول کيږي .

په حديث کي راځي نبي عليه السلام فرمايې چي را وبه پاځول سي ټول مخلوق په ورځ دقيامت چارپايان او مرغان بيا به الله جل جلاله له ښکرور حيوان څخه دبې ښکرو حيوان بدله واخلي اوبيا به ورته ووايې چي اوس نو خاوري سه په دغه وخت کي به کافر ووايې (يَالَيْتَنِي كُنتُ تُرَابًا(٤٠) النبا_يعني کاشکي زه خاوري سوی وای

وَالْجَنَّةُ وَالنَّارُ مخلوقتان اليوم لَاتفنيان أبدا ولاتموت الحورالعين ابدا وَلَا يفنى عِقَاب الله تَعَالَى ولاثوابه سرمدا

او جنت او جهنم موجود دي نن ورخ لا نه فناء كيږي هيڅكله او نه مري حوري دجنت هيڅكله او نه فناء كيږي عذاب دالله تعالى او نه ثواب دده هميشه به وي

## تشريح

(وَالْجَنَّةُ وَالنَّارُ مخلوقتان اليوم)يعني جنت او جهنم اوس لا موجود دي خكه الله جل جلاله فرمايي دجنت په حق كي(أُعِدَّتْ لِلْمُتَّقِينَ(١٣٣) ال عمران_يعني جنت دپرهېزګارانو لپاره تيارسوى ده. اودجهنم په باره كي وايي(أُعِدَّتْ لِلْكَافِرِينَ (١٣١) ال عمران_يعني جهنم دكافرانو لپاره تيار سوى ده

په حديث قدسي كي راځي(أعددت لعبادي الصالحين ما لاعين رأت ولاأذن سمعت ولاخطر على قلب بشر)يعني ماتيار كړى ده دخپلو صالحو بندګانو لپاره داسي جنت چي هيڅ ستركو نده ليدلى او نه هم هيڅ غوږ د هغه صفت په پوره توګه اورېدلى ده او نه هم په زړه كي د بشر دهغه تصور راغلى ده همداسي په بل حديث كي راځي(ادخلت الجنة واريت النار)يعني زه جنت ته داخل كړل سوم او جهنم را وليدل سو وماته

په پورته اياتو او حديثو كي دجنت او جهنم په باره كي هغه صيغې ذكر سوي دي چي هغه دماضي لپاره وضع سوي دي نو ترڅو چي دليل نوي دربدلى پر مجاز باندي حمل كول ئې پرمجاز جائز نده

له اهل السنة والجماعة سره په دې كښې معتزله مخالفت لري خكه دوى وايي چي جنت اوجهنم في الحال موجود ندي نو په دې قول كي دامام الائمة رد ده پر دوى باندي

ملاعلي قاري رحمه الله تعالى وايي چې اصح قول داده چې جنت په اسمان کې ده اودلالت کوي پردې باندي داقول دالله تعالى(عِندَسِدْرَةِ الْمُنْتَهى(١٤) عِندَهَا جَنَّةُ الْمَأْوَى(١٥)النجم يعني له سدرةالمنتهى سره له هغې سره جنةالماوى ده. دارنګه دلالت کوي پر دې باندي داچې نبي عليه السلام فرمايي (سقف الجنة عرش الرحمن)يعني بام اوچت دجنت عرش درحمن ده. خيني علماء بيا وايي چې په مخکه کې ده او خينو بيا توقف کړی وايي چې دالله تعالى څخه بغير بل څوک ورباندي علم نلري. دجهنم په باره کې خيني وايي چې په مخکه کې ده تر اوو مخکو لاندي ده او خيني وايي تر مخکو لوړ ده اوخيني توقف کوي په دې کښې لکه په جنت کې

## دپل صراط بيان

همدامې پل صراط حق اوثابت ده په قران او حديث سره الله جل جلاله فرمايي(وَإِنْ مِنكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا)مريم_يعني له تاسو څخه به هيڅوک دامې نوي چې پر پل صراط تبر نسي. له حسن اوقتادة رحمة الله تعالى عليهما څخه روايت سوی ده چې مراد له ورود څخه تبربدل دي پر پل صراط باندي.امام نووي رحمه الله تعالى وايي چې مراد له ورود څخه تبربدل دي حديث کې راځي نبي عليه السلام فرمايي(إن على جهنم جسرا أدق من الشعر وأحد من السيف) يعني ببشکه پر جهنم باندي پل سته چې نرم اوباريک ده تر وېښته او تېره ده تر توري.

په بل روايت کې راځي(فيمر المؤمنون كطرف العين وكالبرق الخاطف وكالطير وكاجاويد الخيل والركاب فناج مسلم ومخدوش مرسل ومكدوس في نار جهنم) يعني مؤمنان به دسترګو د رپ پشان ورباندې تېرېږي او خيني به دتيزي برېښنا په شان اوخيني به دمرغه پشان او خيني به دتيزو اسانو پشان اوخيني به داوښانو پشان ورباندي تېرېږي نوخيني مؤمنان به نجات مندونکي اوسالم وي

اوخيني به مخدوش يعني زخمي سي بيا به خلاص سي اوخيني به غورزول کيږي په اور کي دجهنم

ملاعلي قاري رحمه الله تعالی وايي چي له عقائدو څخه دا هم ده چي دالله تعالی له لوري اندامونه ګويان کول او په هغو سره خبري کول حق دي لکه چي الله جل جلاله فرمايي (يَوْمَ تَشْهَدُ عَلَيْهِمْ أَلْسِنَتُهُمْ وَأَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُمْ بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ (٢٤)النور_يعني په هغه ورځ چي شاهدي ورکړي د دوی پر عملو باندي ددوی ژبي اولا سونه او پښې

## دجنت اوجهنم دخلودبيان.

(لَاتفنيان أبدا)ددې تورو که معنی دامي وکړل سي چي نه فناء کيږي جنت او جهنم دهميشه لپاره نو له دې قول سره دالله جل جلاله تضاد نلري(كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ إِلَّا وَجْهَهُ) القصص_ يعني هرشی فناءکبدونکی ده غير له ذات څخه دالله تعالی. څکه چي دا رواده چي جنت او جهنم فناء کړل سي که څه هم يوه لحظه وي اوبيا دي موجود سي تر ابده.اوکه ئې معنی دامي وکړل مي چي جنت او جهنم نه فناء کيږي هيڅکله نوبيا دايت مبارکه معنی هلاک ذاتي ده يعني هر ممکن په نظر وذات دالله تعالی چي واجب الوجود ده په شان دمعدوم ده او بقاء عرضي دممکن په نظر وبقاء ذاتي دالله جل جلاله دامي ده لکه فناء

(ولاتموت الحورالعين ابدا)يعني تل تر تله به وي حوري دجنت نه فناءکيږي هيڅکله څکه حديث کي راغلي نبي عليه السلام فرمايي چي په جنت کي د حورو دجمع کېدو لپاره يو ځای سته او هلته به دوی وايي په لوړ اواز سره دامي(نحن الخالدات فلا نبيد ونحن الناعمات فلا نبأس ونحن الراضيات فلا نسخط طوبى لمن كان لنا وكنا له)يعني موږ هميشه يوو په جنت کي فناءکيږو نه او موږ په نعمتو کي يوو نه ګرځو محتاجه اوموږ راضي يوو له

خپل رب څخه نو ناراضه کیږو نه خوشحالي ده هغه چا لره چې دی مونږ لره
وي او مونږ ده لره یوو

(وَلَایفنی عِقَاب الله تَعَالَی ولاثوابه سرمدا)یعني عذاب دالله تعالی او ثواب دده
نه فناء کیږي هیڅکله څکه الله جل جلاله فرمايي په حق کي د دوزخیانو
(أُولَئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَاخَالِدُونَ(۲۷)یونس_یعني داکسان اهل الناردي
دوی به په هغه کي همیشه اوسیږي او په حق کي دمؤمنانو فرمايي(أُولَئِكَ
أَصْحَابُ الْجَنَّةِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ(۲۳) هود_یعني دغه کسان دجنت صاحبان
دي دوی به په هغه کي همیشه اوسیږي

په روایت کي د عبد الله بن عمر رضي الله تعالی عنهما راځي چې نبي علیه
السلام وفرمایل(یدخل أهل الجنة الجنة وأهل النار النار ثم یقوم مؤذن
بینهم یا أهل النار لا موت ویا أهل الجنة لا موت خلود) یعني داخل به سي
جنتیان وجنت ته او جهنمیان وجهنم ته بیا به و دریږي یو اعلان کوونکی تر
منځ ددوی او دا اعلان به وکړي اي داور خلکو مرګ نسته او اي دجنت خلکو
مرګ نسته بلکه همیشه توب ده

جهمیه چې دجبریه و خاصه دله ده وايي چې جنت او جهنم او اهل ئې فناء
کیږي خو دا باطل قول ده څکه دقران سنت او اجماع سره مخالفت لري نو
په دې قول کي دامام اعظم رحمه الله تعالی رد ده پر دوی باندي

وَاللهُ تَعَالَى يهدي من يَشَاء فضلا مِنْهُ ويضل من يَشَاء عدلا مِنْهُ وإضلاله خذلانه وَتَفْسِير الخذلان ان لَايوفق العَبْد عَلَى مَا يرضاه منه وَهُوَ عدل مِنْهُ وَكَذَا عُقُوبَة المخذول على المَعصِيَة

او الله تعالى هدايت كوي هغه چاته چې خوښ ئې سي(هدايت دهغه)په خپل فضل سره او گمراه كوي هغه څوک چې خوښ ئې سي (ضلالة دهغه) په خپل عدل سره او گمراه كول دالله تعالى خذلان دده ده او تفسير دخذلان داده چې الله تعالى توفيق ورنكړي وبنده ته پر هغه عمل چې الله تعالى راضي كيږي په هغه سره له بنده او دا عدل ده له الله تعالى څخه دارنګه عذاب وركول ومخذول ته پر ګناه باندي عدل دالله تعالى ده

## تشريح

(وَاللهُ تَعَالَى يهدي من يَشَاء فضلامِنْهُ)يعني الله تعالى هدايت او لار ښوونه كوي هغه چاته چې خوښ ئې سي هدايت دهغه په خپل فضل سره او دايوخاص انعام ده دالله جل جلاله خاصه وي په دې سره خپني بندګان لكه چې فرمايي(فَمَنْ يُرِدِ اللَّهُ أَنْ يَهْدِيَهُ يَشْرَحْ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ)الانعام_يعني نوهغه څوک چې الله تعالى هغه ته دهدايت كولو اراده وكړي دهغه سينه داسلام لپاره فراخه كړي

(ويضل من يَشَاء عدلامِنْهُ)يعني الله تعالى ګمراه كوي هغه څوک چې اراده ئې وي دګمراه كولو د هغه په داسي ډول چې و ګرځوي زړه دهغه تنګ له قبلولو د ايمان لكه چې فرمايي (وَمَنْ يُرِدْ أَنْ يُضِلَّهُ يَجْعَلْ صَدْرَهُ ضَيِّقًا حَرَجًا كَأَنَّمَا يَصَّعَّدُ فِي السَّمَاءِ)الانعام_يعني او هغه څوک چې الله جل جلاله ئې دګمراه كولو اراده وكړي نو و ګرځوي سينه د هغه تنګه ډيره تنګه كواكي هغه په سختۍ پورته كيږي په اسمان كي

(واضلاله خذلانه)يعني اضلال دالله تعالى عبارت ده له دې څخه چې الله جل جلاله پرېږدي نصرت اوکومک دبنده په ایمان راوړلو کي

(وَتَفْسِيرُ الخذلان ان لَايوفق العَبْد عَلى مَا يرضاه منه وَهُوَعدل مِنْهُ)يعني خذلان دبته ویل کیږي چې الله جل جلاله توفيق ورنکړي وبنده ته دهغه کارو چې الله تعالى په راضي کيږي لکه ایمان اودا خذلان دالله تعالى عدل ده څکه پر الله تعالى باندي هيڅ شی واجب نده

(وَكَذَا عُقُوبَة المخذول على المَعْصِيَةَ)يعني همداسي عذاب ورکول ومخذول ته پرګناه باندي عدل ده ظلم نده څکه تصرف کول دي په ملک کي دبل چا او دا دامي نده

وَلَايجوز ان نقُول إِن الشَّيطَان يسلب الْإِيمَان من العَبْدالْمُؤمن قهراً وجبراً وَلَكِن نقُول العَبْد يدع الْإِيمَان فَحِينَئِذٍ يسلبه مِنهُ الشَّيْطَان

او دا روا نده چې موږ ووايو چې شيطان وړي ايمان له مؤمن څخه په زور او جبر سره بلکه موږ وايو چې بنده پرېږدي ايمان په خپله نو په دغه وخت کې ئې شيطان ځني سلب کړي

## شيطان له انسان څخه ايمان په زور نه وړي.

(وَلَايجوز ان نقُول إِن الشَّيطَان يسلب الْإِيمَان من العَبْدالْمُؤمن قهراًوجبراً)يعني موږ نه داسې وايو او نه هم دا عقيده لرو چې شيطان ايمان وړي له بنده څخه په زور او جبره سره په دامې ډول چې شيطان دي بنده مجبوره کړي پر ترک او پرېښولو دايمان باندې ځکه الله جل جلاله فرمايي(إِنَّ عِبَادِي لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطَانٌ إِلَّا مَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْغَاوِينَ (٤٢)الحجر_يعني ببشکه خوک چې زما رښتيني او خاص بندګان دي تالره پر هغو هيڅ تسلط او غلبه نسته بغير له هغه ګمراهانو چې ستا پيروي کوي

(وَلَكِن نقُول العَبْد يدع الْإِيمَان فَحِينَئِذٍ يسلبه مِنهُ الشَّيْطَان)يعني موږ وايو چې بنده ايمان پرېږدي په خپل اختيار او اراده سره په سبب د وسوسو دشيطان نو کله چې ئې پرېږدي شيطان ئې ځني سلب کړي ځکه که شيطان مخکې تردې چې بنده ايمان پرېږدي ايمان له بنده څخه سلب کړي نوبيا خو داخبره لازمه سوه چې بنده محبور ده پر کفر باندې او حال داده چې امام اعظم رحمه الله تعالى مخکې ذکرکړه چې الله جل جلاله نه پيدا کوي کفر په زړه کې دبنده بيله اختياره دبنده

للدې داچې شيطان که څه هم دانسان دښمن ده خو دامې تسلط نه ورباندې لري چې څه په کوي هغه په وکړي بلکه انسان اختيار لري په خپل فعل کې او عقل ساتونکی ده انسان لره له شر او شهواتو څخه ځکه دده

هدايت کوي وحق ته.اوشيطان غولونکی ده انسان لره کوشش کوي چې انسان واچوي په شر اوشهواتو کي خکه دښمن نې ده نو که انسان دشيطان په وسوسو عمل ونکړي بلکه تابعداري وکړي دعقل چې دده لپاره ساتونکی ده نو به نجات پيداکړي له خطري څخه اوسلوک به وکړي پرحقه لاربالندي اوکه انسان پرېږدي هدايت دعقل بلکه تابعداري وکړي دشيطان په ميلان کي وشر او شهواتو ته او په پرېښولو کي دايمان نو شيطان ايمان خني وړي په دي وخت کي همدا دمغه ايت معنی ده چې مخکي ذکر سو .کتبه الاحقر ابو منصور عبد الکريم شهيد زاده

وسؤال مُنكر ونَكِير حق كَائِن فِي القَبْر وإعادة الرّوح إِلَى الْجَسَد فِي قَبره حق وضغطة القَبْر وعذابه حق كَائِن للْكفَّار كلهم ولبعض عصاة الْمُؤمنِينَ

او پوښتنه دمنكر او نكير حق ده ثابته ده په قبر كي او را كر خبدل دروح وجسد ته په قبر كي حق ده او تنگي دقبر اوعذاب ئې حق ده ثابت ده ټول كفارو لره او خيني گناه گارانو مؤمنانو لره

## دمنكر اونكيربيان

(وسؤال مُنكر وَنَكِير حق كَائِن فِي الْقَبْر) منكر او نكير نومان دي دهغه ملكو چې انسان ته راځي په قبر كي حديث كي راځي چې كله انسان دفن كړل سي نو دوي نوري او شين سترګي ملكي ورته راسي يوي ته منكر او بلي ته نكير ويل كيږي.منكر او نكير په دې وجه ورته ويل كيږي چې مړي ئې نه پيژني او نه ئې ددوی صورت ليدلی. مطلب دا چې پوښتنه دمنكر او نكير له مړي څخه په قبر كې چې رب دي څوك ده دين دي څه ده او نبي دي څوك ده حق ده اوخامخا واقع كيدونكي ده نو مؤمن به داسي جواب وركوي(ربي الله ديني الاسلام ونَبي محمد ويقول الكافر هاه هاه لاادري)يعني زمارب الله تعالى ده دين مي اسلام ده نبي مي محمد عليه السلام ده او كافر به وايي چې هاه هاه زه په هيڅ نه يم خبر

.

په باره كي دعذاب د قبر نازل سوی ده دغه آيت (يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَفِي الْآخِرَةِ)ابراهيم-يعني الله تعالى مظبوطوي هغه كسان چې ايمان ئې راوړی پر قول ثابت په ژوندكي ددنيا او په اخرت كي. په حديث كي راځي دبراء بن عازب رضي الله تعالى عنه له نبي عليه السلام څخه (قال يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا) قال نزلت في عذاب القبر يقال له من ربك فيقول ربي الله ونبيي محمد فذاك قوله يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَفِي الْآخِرَةِ)

## دقبرله سوال څخه څوک مستثنی دي،

خو دقبر له سوال څخه انبياء عليهم السلام او كوچنيان او شهيدان مستثنی دي له دوی څخه پوښتنه نه کيږي له نبي عليه السلام څخه دشهيدانو په باره کي پوښتنه وسوه ده مبارک وويل(كفى ببارقة السيوف شاهدا)يعني د دوی لپاره دتورو ځلبدل کافي دي دشاهد په توګه.په کفايه‌کي راځي چي له انبياء عليهم السلام څخه پوښتنه نه کيږي سيدابو شجاع رحمه الله تعالی چي داحنافو له دلي څخه ده وايي چي له کوچنيانو څخه په قبر کي پوښتنه کيږي همدامي له انبياء عليهم السلام څخه په نبز دبعضي علماء، خيني علماء وايي چي کوچنيان دمؤمنانو يقينا بخښل سوي دي خو سوال د يو دامي حکمة لوجهي څني کول کيږي چي هيڅ څوک نده په خبر

## دروح راګرځبدل په قبرکي،

(واعادةالرّوح إِلَى الجَسَد فِي قَبره حق)يعني راګرځبدل دروح وجسددبندده ته په قبرکي حق ده خودغه راګرځبدل په ټولو اجزاو سره وي اوکه دځينو سره وي هغه اجزاء سره جلا جلا وي اوکه سره يو ځای وي، واو دمطلقي جمعيت لپاره ده نو بيابه داسوال نه وارديږي چي دمنکراو نکير پوښتنه خو د روح تررا ګرځبدو ورسته ده

ملاعلي قاري رحمه الله تعالی وايي چي ټول اهل السنة والجماعة پر دي متفق دي چي الله جل جلاله مړي ته په قبر کي دونه قدر ژوند ورکوي چي دعذاب او يلراحت ادراک په کولاي سي لېکن په دي کي ئې اختلاف ده چي ايا روح ورته راګرځي او که يا له امام امام اعظم رحمه الله تعالی څخه داسي روايت سوی چي ده توقف کړی په دي خبره کښي لېکن دده کلام په دي کتاب کي دلالت کوي پر راګرځېدو دروح ځکه جواب دمنکر او نکير يو اختياري فعل ده ممکن نده بېله روح څخه او ځيني وايي چي ممکن ده ځکه چي کله يو څوک بېله

مي روح خپي وزي خو بيا هم روح دبدن سره تعلق لري حتی د تکليف او
راحت احساس کولای مي په خوب کي

(وضغطة القَبْر وعذابه حق كَائِن)ضغطة القبر عبارت ده دمځکي له رانيولو او تنګبدلو پر مړی باندي په اوله مرحله کي ورسته ني الله جل جلاله پيرته فراخوي حتی دځينو لپاره خو ئې دهغو دسترګو دديد په اندازه فراخوي. ځيني علماء وايي چي دقبر ضغطة دمؤمن لپاره دامي وي لکه مور چي مسافر زوی په غيږ کي ونيسي يعني تنګي دقبر حق ده حتی د کامل مؤمن لپاره هم تنګي دقبر سته لکه حديث کي راځي(إِنَّ لِلْقَبْرِ ضَغْطَةٍ لَوْ كَانَ أَحَدٌ نَاجِيًا مِنْهَا لَنَجَا سَعْدُ بنُ مُعَاذٍ الذي اهْتَزَّ عَرْشُ الرَّحْمَنِ لِمَوْته)يعني ببشکه قبر لره تنګي سته که چيري دقبر له تنګي څخه يوڅا نجات پيدا کولای نو سعد بن معاذ به نجات پيدا کړی وای هغه سعد چي په مرګ ئې دالله تعالی عرش ولرزيدئ همدامي عذاب دقبر حق ده لکه چي الله جل جلاله فرمايي(النَّارُ يُعْرَضُونَ عَلَيْهَا غُدُوًّا وَعَشِيًّا)غافر يعني دوی به هرسهار اوماښام پراورباندي ور وړاندي کيږي او داعرض به په قبر کي وي څکه الله تعالی فرمايي(وَيَوْمَ تَقُومُ السَّاعَةُ أَدْخِلُوا آلَ فِرْعَوْنَ أَشَدَّ الْعَذَابِ(٤٦)غافر يعني په هغه ورځ چي قيامت ودريږي (نوداالله تعالی له لوري به ملائکو ته وويل سي چي)داخل کړئ آل دفرعون وسخت عذاب ته په بل خای کي الله تعالی فرمايي(وَلَنُذِيقَنَّهُمْ مِنَ الْعَذَابِ الأَدْنَى دُونَ الْعَذَابِ الأَكْبَرِ) السجدة يعني موږ به خامخا ور وڅکو دوی ته لږ عذاب مخکي ترلوی عذاب يعني مخکي ترعذاب داخرت .

شيخ ابو المعين رحمه الله تعالی له امام قونوي رحمة الله تعالی عليه څخه رانقل کړي دي چي دقبر عذاب حق ده مؤمن او کافر .

(لْلكفّاركلهم ولبعض عصاة الْمُؤمنِين)يعني تولو کافرانو لره او بعضي ګناه کارانو مؤمنانو لره.شيخ ابو المعين رحمه الله تعالی په ځهل اصول کي بوه

خبرکړي ده او امام قونوي رحمة الله تعالی علیه هم رانقل کړې ده هغه وايي چي د قبر عذاب حق ده مؤمن او کافر مطیع اوفاسق تولو ته ورکول ورکول کیږي لیکن دونه فرق لري چي دکافر لپاره به همیشه عذاب وي په قبر کي خو دجمعې په ورځ او د روژي په میاشت کي به خني پورته کیږي دنبي علیه السلام په برکت سره خکه چي کله نبي علیه السلام په دنیا کي موجود وو نو الله جل جلاله دده په حرمة دوی ته په دنیا کي عذاب نه ورکاوه همداسي به په قبر کي دجمعې په ورځ او دروژي په میاشت کي دده په برکت او حرمت سره عذاب خني پورته کیږي ملاعلي قاري رحمه الله تعالی پر دي خبره رد کړي ده او وايي چي صحې خبره هغه ده چي قونوي کړې ده چي مؤمن که مطیع وو بیا دهغه لپاره دقبر عذاب نسته بلکه دقبر ضغطة سته چي یوخه ببره او دهشت به محسوس کړي

لکه خنکه چي عذاب په قبر کي حق ده همداسي وبعضي مؤمنانو ته نعمتونه ورکول حق دي حدیث کي راځي(القبر روضة من رياض الجنة أو حفرة من حفر النار) یعني قبر دجنت له باغچو یوه باغچه ده او یا دجهنم له کندو خخه یوه کنده ده

وكل شَيْء ذكره الْعلمَاء بِالْفَارِسِيَّةِ من صِفَات الله عز اسْمه فَجَائِز القَوْل بِهِ سوى الْيَد بِالْفَارِسِيَّةِ وَيجوز ان يُقَال ( بروىء خدا ) عز وَجل بِلَا تَشْبِيه وَلَا كَيْفيَّة

او هرشي چې ذكر كړی وي علماء په فارسي سره له صفاتو دالله جل جلاله نو په هغه سره قول كول جائز دي ما سوا له يد څخه په فارسي سره او دا رواده چې وويل سي دخدای په روی بلا تشبيه او بلا كيفيه

## تشريح

(وكل شَيْء ذكره الْعلمَاء بِالْفَارِسِيَّةِ من صِفَات الله عز اسْمه فَجَائِز القَوْل بِهِ)مراد له فارسي څخه هر لغت چې غير له عربي څخه وي لكه افغاني هندي تركي او داسي نور. يعني دالله جل جلاله له صفاتو څخه هرصفت بلكه وجه قدم عين چې علماء ذكر كړی وي له عربي پرته په بل لغت سره نو موږ ته رواده چې دهغو اتباع وكړو او موږ ئې هم ذكر كړو په نورو لغاتو سره. همداسي د الله تعالى له نومانو څخه هر نوم چې علماء ذكر كړی وي له عربي پرته په بل لغت سره موږ ته رواده چې ذكر ئې كړو نو دا روا ده چې ووايو خدای تعالى توانا هست

(سوى الْيَد بِالْفَارِسِيَّةِ)يعني ماسوا له يد څخه خكه له عربي بغيره په بل لغت سره تعبير خني كول جائز ندي بلكه په څه دول چې كتاب او سنت تعبير كړی وي په هغه دول تعبير كول جائز دي نو دا روا نده چې ووايو دست خدای تعالى

(وَيجوز ان يُقَال ( بروىء خدا ) عز وَجل بِلَا تَشْبِيه وَلَا كَيْفيَّة) يعني دا رواده چې وويل سي دخدای په روی يعني بوجه الله خو په داسي حال كي چې د هر دول تشبيه او كيفيت څرنگوالي نفي په كوي

وَلَيْسَ قرب الله تَعَالَى وَلَا بعده من طَرِيق طول الْمسَافَة وقصرها وَلَا على معنى الْكَرَامَة والهوان وَلَكِن المطيع قريب مِنْهُ بِلَا كَيفَ والعاصي بعيد مِنْهُ بِلَا كَيفَ والقرب والبعد والإقبال يَقع على المناجي وَكَذَلِكَ جواره فِي الْجنَّة وَالْوُقُوف بَين يَدَيْهِ بِلَا كَيفِيَّة

او نده نژدې والی دالله تعالی او لیرې والی دده له لارې داوږد والي دمسافې او یا له لنډوالي دمسافې او نه هم په معنی دکرامت او تحقیر ده بلکه فرمان بر داره انسان نژدې ده والله تعالی ته بلاکیفه او گناه گار لیرې ده له الله تعالی څخه بلاکیفه او نژدې والی او لیرې والی اواقبال واقع کیږي پرمناجي باندي(یعني وبنده ته منسوبیږي) او همداسې مجاورة له الله تعالی سره په جنت کې او دریدل په حضور کې دالله تعالی سته بلا کیفه

## دالله تعالی دقرب اوبعدبیان ،

(وَلَيْسَ قرب الله تَعَالَى وَلَابعده من طَرِيق طول الْمسَافَة وقصرها) یعني نژدې والی د الله تعالی عابدانو لره او لیرې والی ئې له گناه گارانو څخه لکه حدیث کې چې راځي (السخي قريب من الله والبخيل بعيد من الله)یعني سخي سړی الله جل جلاله ته نژدې ده او بخیل له الله تعالی څخه لیرې ده. له لارې دمسافې څخه نده خکه قرب او بعد له دې لارې څخه په هغه شی کې راځي چې هغه په مکان کې وي متحیز وي او په یو جهت کې وي او الله تعالی منزه ده له مکان حیز او جهت څخه.بلکه مراد له قرب او بعد څخه قرب اوبعد معنوي ده لکه چې معلومیږي له دې قوله دالله تعالی(إِنَّ رَحْمَتَ اللَّهِ قَرِيبٌ مِنَ الْمُحْسِنِينَ(٥٦) الاعراف یعني رحمت دالله تعالی نژدې ده نیکی کونکو ته.همداسې له دې آیت څخه فهمیږي چې د الله تعالی رحمت له گناه گارانو څخه لیرې ده

(وَلَاعَلَى مَعنى الْكَرَامَة والهوان) یعني نه هم قرب او بعد په معنی دکرامت او ذلة

دي چې نژدې والى دالله تعالى وبنده ته كرامت او كمال دبنده ده او ليري والى دالله تعالى له بنده څخه ذلت اوسپکاوي دبنده ده

په خينو نسخو كي دامي راځي ولكن على معنى الكرامة والهوان پر دغه نسخه معنى د عبارت دامام اعظم رحمه الله تعالى دامي ده نژدې والى دالله تعالى وبنده ته او ليري والى ني له بنده څخه په دې معنى نده چې په مسافه كي ورنژدې ده او ياځيني ليري ده بلكه په دې معنى ده چې مرادله قرب څخه كرامت او احسان ده او مراد له بعد څخه ذلت او سپكاوى ده يعني قرب دالله تعالى كرامت ده بنده لره او بعد ني ذلت ده بنده لره

پر دغه نسخه دا اعتراض وارديږي چې دامام اعظم رحمه الله تعالى داقول تكر او تضاد لري له دې قوله سره دده چې ولكن المطيع قريب منه .... خكه چې كله له قرب څخه كرامت اراده مي او له بعد څخه ذلت نو داخو مجازي معناګاني دي مكيفي او معقولي دي نو بياڅنګه امام اعظم رحمه الله تعالى دا حكم كوي چې قرب دمطيع او بعددعاصي بلا كيفه ده. همدامي تعدد د استدراك لازميږي خكه يو وار استدراك وكړل سو په دې قول سره ولكن على معنى الكرامة.... او بل وار په دې قول سره استدراك كيږي ولكن المطيع.... په دامي حال كي چې دا دوه استدراكه يو له بل سره تكر او تضاد لري او دا جائز نده

ددې شبهې جواب كيداى سي په دې سره چې قرب او بعد دوي معناګاني لري بوه مجازي معنى چې معقوله او مكيفه ده او بله حقيقي معنى چې غير مكيفه او غير معقوله ده نو امام اعظم رحمة الله تعالى عليه اول وار استدراك دمعنى ني مجازي وكړ او دوهم وار ني استدراك وكړ دمعنى حقيقي نو واو په دې قول كي ولكن المطيع په معنى داو ده والله اعلم

(ولَكِن المطيع قريب مِنْهُ بِلَاكَيف والعاصي بعيد مِنهُ بِلَا كَيف)يعني قرب دالله تعالی او بعد ئې دواړه بلا كيفه دي له هر قسم تشبيه او څر نګوالي څخه پاک دي دا قول دامام اعظم رحمه الله تعالى دلالت كوي پر دې باندې چې قرب او بعد دالله تعالی له متشابهاتو څخه دي دده په نېز

(والقرب والبعدوالإقبال يَقع على المناجي)يعني قرب بعداواقبال همداسې اعراض لكه څنګه چې ئې پر الله تعالى اطلاق كيږي دارنګه ئې پر هغه بنده هم اطلاق كيږي چې الله جل جلاله ته عاجزي كوونكى وي او دده درضاء طلب كوي لكه چې فرمايي الله تعالى(وَاسْجُدْ وَاقْتَرِبْ(١٩)العلق_يعني الله تعالى ته سجده وكړه او هغه ته ورنږدې سه.په حديث كې راځي (أقرب ما يكون العبد الى الله وهو ساجد)يعني هغه وخت چې بنده الله جل جلاله ته ډير نږدې وي هغه وخت ده چې بنده الله تعالى ته پر سجده وي ليكن بلا كيف څكه دمخكني او ورستني كلام تقيد ئې په بلاكيف سره پر دې باندې دلالت كوي لفظ دبعد دلته ددې لپاره ذكر سوى ده چې د قرب ضد بيان كړي كه داسې نوې نو پر مناجي يعني متضرع باندې اطلاق دقرب او اقبال كيږي نه د بعد

(وَ كَذَلِكَ جواره فِي الْجَنَّة )يعني همداسې مجاورة له الله جل جلاله سره په جنت كې لكه دطبراني په روايت كې راځي چې الله تعالى وفرمايل وجنت ته (وعزتي وجلالي لايجاورني فيك بخيل)يعني زما دې قسم وي په خپل عزة او جلال سره چې مجاورة به ونكړي له ماسره په تا كې بخيل سړى

(وَالْوُقُوف بين يَدَيْهِ بِلَاكَيْفِيَّة)يعني درېدل په قيامت كې په وړاندې دده بلا كيفه سته لكه چې الله تعالى فرمايي(وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَانِ(٤٦)الرحمن_يعني دهغه چا لپاره چې دخپل رب په وړاندې له درېدلو وبېرېږي دوه جنته دي. په بل ځاى كې فرمايي(وَأَمَّا مَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ)النازعات_يعني چا چې دخپل رب په وړاندې له درېدلو څخه بېره كړي وه

امام غزالی رحمه الله تعالی وايي قرب والله جل جلاله ته په دي کښي ده چي سړی خان وساتي له حيواني او درندګي صفاتو څخه او تخلق وکړي دخپل خان په مکارم داخلاقو لکه کرم حلم عفو علم او داسي نور مطلب دا چي قرب په بعدکي ده.نو هغه څوک چي قريب نوي بيا قريب وګرځيږي نو واوښت له شقاوة څخه وسعادة ته په سبب دښو اعمالو

وَالقرآن منزل على رَسُول الله صلى الله عَلَيهِ وَسلم وَهُوَ فِي الْمَصَاحِف مَكْتُوب وآيَات الْقُرْآن فِي معنى الْكَلَام كلهَا مستوية فِي الْفَضِيلَة وَالْعَظَمَة الا ان لبعضها فَضِيلَة الذّكر وفضيلة الْمَذْكُور مثل آيَة الْكُرْسِيّ لِأَن الْمَذْكُور فِيهَا جلال الله تَعَالَى وعظمته وَصِفَاته فاجتمعت فِيهَا فضيلتان فَضِيلَة الذّكر وفضيلة الْمَذْكُور ولبعضها فَضِيلَة الذّكر فَحسب مثل قصَّة الْكفَّار وَلَيْسَ للمذكور فِيهَا فضل وهم الْكفَّار وَكَذَلِكَ الْأَسْمَاء وَالصِّفَات كلهَا مستوية فِي العظمة وَالْفضل لَا تفَاوت بَينهَا

او قران نازل سوی پر نبي علیه السلام باندي په مصاحفو کي لیکل سوی ده او ټول آیاتونه دقران په معنی کي دکلام سره برابر دي په فضیلت او عظمت کي لیکن خینو لره فضیلت دذکر او مذکور دواړو سته لکه آیت الکرمي خکه مذکور په آیت الکرمي لوړي عظمت او صفات دالله تعالی دي نو جمع سوي دي په آیت الکرمي کي فضیلت دذکر او مذکور دواړه او خینو لره فضیلت دذکر سته فقط لکه دکفارو قصه نسته مذکور لره په دي کي فضیلت چي کفار دي همدامي اسماء او صفات ټول سره برابر دي په عظمت او فضیلت کي تفاوت نه سره لري

## تشریح

(وَالقرآن منزل على رَسُول الله صلى الله عَلَيهِ وَسلم)یعني قران په تدریج سره پرنبي علیه السلام نازل سوی ده په درویښت کاله کي په دي قول کي دامام صاحب رد ده پر غرابیه و چي د روافضو څخه یوه ډله ده څکه دوی وایي چي الله جل جلاله حضرت جبرائیل علیه السلام وعلي رضي الله تعالی عنه ولیږی خو هغه خطا سو نبي علیه السلام ته ولاړی. داقول مخالف ده له قران سره او تکذیب دقران ده نعوذ بالله

(وَهُوَ فِي الْمَصَاحِف مَكْتُوب)يعني په مصاحفو كې ليكل سوى ده په هغه الفاظو سره چي دلالت كوي پر كلام نفسي دالله جل جلاله باندي په دې قول كې دامام اعظم رحمه الله تعالى اشاره ده ودېته چي مابين الدفتين كلام الله ده لكه چي همدغه مشهوره ده

(وآيات القُرآن فِي معنى الْكَلَام كلهَا مستوية فِي الْفَضِيلَة وَالْعَظَمَة)يعني آياتونه دقران له دې وجهي چي كلام دد منسوب ده والله تعالى ته تول سره برابر دي په لفظي فضيلة كې هم په معنوي عظمة كې حديث كې راځي نبي عليه السلام فرمايي(فضل كلام الله على سائرالكلام كفضل الله على سائر خلقه)يعني دالله تعالى دكلام فضيلت پر نورو كلامو باندي دامي ده لكه فضيلت دالله تعالى پرمخلوق باندي آياتونه دقران په دې فضيلت كې تول سره برابر دي كه څه هم خيني آياتونه دالله جل جلاله درحمت او داولياءالله بيان كوي او خيني بيا دالله جل جلاله دغضب او دده دېښمنانو بيان كوي خيني بيا داحكامو او اوامرو بيان كوي

(الا ان لبعضها فَضِيلَة الذّكر وفضيلة الْمَذْكُور مثل آيَة الْكُرْسِيّ)يعني دقران په اياتو كې خيني آياتونه دامي دي چي هم لفظي فضيلت لري څكه دالله جل جلاله كلام ده هم معنوي فضيلت لري څكه مذكور په كې دالله تعالى لويي عظمت صفات وي لكه آية الكرسي

(لِأَن الْمَذْكُور فِيهَا جلال الله تَعَالَى وعظمته وَصِفَاته فاجتمعت فِيهَا فضيلتان فَضِيلَة الذّكر وفضيلة الْمَذْكُور)څكه مذكور په آيت الكرسي دالله تعالى لويي عظمت او صفات دي نو په آيت الكرسي كې دوه فضيلت جمع سوي دي فضيلت دلفظ او فضيلت دمعنى همدامي سورة اخلاص چي دالله جل جلاله په خاص صفاتو سره مختص ده. دارنگه هغه آياتونه چي انبياء عليهم السلام او اولياء كرام ورکي ذكر سوي وي دوه فضيلته لري

(ولبعضها فَضِيلَة الذِّكر فحسب مثل قصّة الكفّار وَلَيْسَ للمذكور فِيهَا فضل وهم الْكفَّار) اوځينوآياتو لره دقران صرف فضيلت دذكر وي فضيلت دمذكور نوي په كښې لکه هغه آياتونه چې دکفارو قصې کې ذکر سوي وي دا لفظي فضيلت لري ځکه دالله جل جلاله کلام ده دکفارو کلام نده او فضیلت د مذکور نه لري ځکه مذکور په دې آياتو کې کافران دي او هغه خاوندان دفضيلت ندي لکه سورت تبت يدا

(وَكَذَلِكَ الْأَسْمَاء وَالصِّفَات كلهَا مستوية فِي العظمة وَالْفضل لَا تفَاوت بَينهَا) يعني لکه څنګه چې آياتونه دقران سره برابردي په فضیلت کې همداسي اسماء دالله تعالى لکه الله الاحدالصمدالملک الواحدالفرداوصفات دالله تعالى لكه له الملک وله الحمد وله الكبرياء والمجد ټول سره برابردي په لفظي او معنوي فضیلت کې تفاوت نسته تر منځ ددوی

روايت كړی ده حاكم شهيد رحمة الله عليه په المنتقى کې له امام اعظم رحمه الله تعالی څخه چې دی وايي دهيڅا لپاره نا خبرتيا له ذات څخه دالله جل جلاله عذر نه بلل کيږي ځکه دی ويني مخلوقات دالله تعالی چې مځکې اسمانونه دي همداسي خپل خان ويني او دامخلوقات دلائل دي پر وجود دالله تعالى باندي او پيژندل کيږي په دې سره. دامام اعظم رحمه الله تعالى څخه په بل روايت کې راغي چې که الله تعالى هيڅ پيغمبر نه وای را ليږلی نو هم به واجب وای پرخلكوباندي معرفت دالله تعالى په خپلوعقلوسره . ملاعلي قاري رحمه الله تعالى وايي نو زموږ او دمعتزله و ترمنځ فرق هغه ده چې امام ابو المنصور الما تريدي او عامو مشائخو دسمرقند ذکری ده معتزله وايي چې کله په عقل سره دېوشی حسن اوقبح معلوم سي نو پر الله تعالى او بنده دوارو بالدي ددغه حسن اوقبح مقتضاء واجب ده موږ وايو چې واجبونکی الله تعالی ده پرخپلو بنده کالو باندي او پر الله تعالى هيڅ شی واجب

نده اوعقل صرف يو آلة ده چې پېژندل کېږي په ده سره حسن او قبح په افعالو کي هغه هم دالله جل جلاله په اطلاع سره

زموږ او داشاعره و ترمنځ فرق داده چې اشاعره وايي چې هيڅ يو حکم له احکامو دالله جل جلاله نه پېژندل کېږي مخکي تر بعثت دنبي موږ وايو خيني احکام پېژندل کېدلای سي مخکي تربعثت دنبي. چې الله تعالیٰ يوچاته علم ورکړي پر هغه باندي ببله کسبه لکه دنبي دتصديق وجوب د ضرر مندو دروغو حرمت اويا په کسب سره او ډير احکام داسي دي چې ببله قران او نبي عليه السلام څخه نه سي پېژندل کېدلای سي.

خيني امامان دبخارا چې احناف دي وايي زموږ په نبز نه ايمان واجب ده او نه کفر حرام ده مخکي تربعثت لکه اشاعره چې وايي او دوی حمل کوي قول دامام اعظم رحمه الله تعالی پر ما بعدالبعثة باندي يعني دامام صاحب تر بعثت ورسته حالت مرادده ليکن ابن همام رحمة الله عليه وايي داحمل ممکن ده په دې قول کي دامام اعظم رحمه الله تعالی( لاعذر لا حد في الجهل بخالقه لما يرى من خلق السموات والارض وخلق نفسه) او په دوهم قول کي دده( لو لم يبعث الله رسولا لوجب على الخلق معرفته بعقولهم ) داحمل ممکن نده ځکه له دې قول څخه صراحة معلومېږي چې مراد ئې تر بعثت مخکي حالت ده

ملاعلي قاري رحمه الله تعالی وايي دامام اعظم رحمه الله تعالی د دواړو قولو ترمنځ توفيق او جمع کېدای سي په دې سره چې حمل سي اول قول ئې پر مابعد البعثة باندي او په دوهم قول کي مراد له وجوب څخه عرفي معنی سي يعني دا چې پرترک ئې عذاب نه لازمېږي بيابه له دې قول سره الله تعالی هم کوم منافات نلري(وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِينَ حَتَّىٰ نَبْعَثَ رَسُولًا(١٥)الاسراء_يعني موږ هيچاته عذاب نه ورکوو ترڅو مو هغه ته رسول نه وي ليږلی. نو نه به دهته

ضرورت وي چې عذاب په آيت کې مقيد کړو په عذاب ددنيا او نه هم دېته چې په رسول کې تعميم وکړو نې او عقل دواړه ځنې واخلو .

په خينو نسخو کې دي( ورسول الله مات على الايمان ) ملاعلي قاري رحمه الله تعالى واېي په خينو نسخو کې دا نسته اوددې کوم ضرورت هم نسته ځکه دنبي صلى الله عليه وسلم شان ډېر عالى ده

وَوَالِدَا رَسُولِ اللّٰه صَلَى اللّٰهُ عَلَيهِ وَسَلم مَاتَا عَلَى الكُفرِ وَعَمهُ اَبوطَالِب مَاتَ كَافِراً

اومور پلار دنبي عليه السلام مره سوي دي پر كفر باندي او اكا دده مرسوى ده كافر

## دنبي عليه السلام دمور اوپلاربيان .

(وَوَالِدَي رَسُولِ اللّٰه صَلَى اللّٰهُ عَلَيهِ وَسَلم مَاتَا عَلَى الكُفرِ)شيخ عبد القادر رحمة الله عليه وايي دا عبارت په موجوده نسخو كي دكتاب موجود ده ليكن زماسره يوه نسخه سته چي په مصر كي چاپ سوي ده په هغه نسخه كي دا عبارت نسته دارنكه په شرح كي دملا علي قاري رحمه الله تعالى دا عبارت نسته سره له دي چي ملاعلي قاري رحمه الله تعالى يوه رساله ليكلي ده په كفر كي د مور او پلار دنبي عليه السلام بياشيخ صاحب وايي په دي سبب مونږ دغه عبارت له ابو المنتهى څخه ليري كړ او له دي سره سره هغه نسخې چي دا عبارت وركي سته هم مختلفي دي په خينو كي داسي دي ماماتا على الاسلام په خينو كي ماماتا على الكفر په خينو كي دي ماتا على الكفر په خينو كي دي ماتاعلى الايمان جلال الدين سيوطي رحمه الله تعالى دري رسالي ليكلي دي په دې كښي چي دنبي عليه السلام موراو پلار پر ايمان مره سوي دي

## دملاعلي قاري رجوع له خپل قول څخه.

خپله ملاعلي رحمه الله تعالى هم رجوع كري ده له دي قوله څخه لكه چي دلالت كوي پر دي باندي عبارت دده په شرح دشفاكي(وأما اسلام أبويه ففيه أقوال والأصح اسلامهما على ما اتفق عليه الأجلة من الأمة كما بينه السيوطي في رسائله الثلاث المؤلفة)

(وَعَمهُ اَبوطَالِب مَاتَ كَافِراً)يعني اكا دنبي عليه السلام ايمان نده راوړي بلكه پر كفر باندي مر ده په خينو رواياتو كي راغلي چي كله ابوطالب مركېدى دمرګ

په وخت کي نبي عليه السلام ورته راغلى ابو جهل او بو څه نور کسان هم هلته موجود وو نبي عليه السلام ورته ووېل اى اکا دتوحيد کلمه ووايه چې ستا دخلاصون لپاره زما سره دليل سي په حضور کي دالله جل جلاله ابوجهل ابو طالب ته ووېل ايا ته دعبد المطلب له دين څخه اوړي او دا خبر ئې په مکرر ډول سره ورته کوله تر څو ابوطالب ووېل زه دعبد المطلب پر دين باندي يم او له دې څخه ئې انکار وکړ چې دتوحيد کلمه ووايي

وقاسم وطاهر وَإِبْرَاهِيم كَانُوا بني رَسُول الله صلى الله عَلَيْهِ وَسلم وَفَاطِمَة ورقية وَزَيْنَب وَأم كُلْثُوم كن جَمِيعًا بنَات رَسُول الله صلى الله عَلَيْهِ وَسلم

او قاسم او طاهر او ابراهيم زامن دنبي عليه السلام وو او فاطمة او رقية او زينب او ام كلثوم رضي الله تعالى عنهن وې تولي لوني دنبي عليه السلام

دنبی علیه السلام داولادبیان ،

(وقاسم وطاهر وَإِبْرَاهِيم كَانُوا بني رَسُول الله صلى الله عَلَيْهِ وَسلم)دنبي عليه السلام په زامنو كي قاسم مشر او لمړنی زوی ده تر نبوت مخكي پيدا سوی وو او تر نبوت مخكي وفات سو نبي عليه السلام به دده په وجه ابو القاسم بلل كېدئ داچي څو نه وخت ژوندی وو په دي كښي اختلاف ده خيني وايي تر هغه وخت پوري ژوندی وو چي دتک سو خيني وايي چي دوه كاله ژوندی وو خيني وايي چي پر حيوان دسپرېدلو سو خو صحي خبره داده چي اولس[١٧] مياشتي ژوندی وو

دنبي عليه السلام دوهم زوی طاهر وو زبير ابن بكار وايي چي دنبي عليه السلام له قاسم او ابراهيم څخه بغير بل دريم زوی هم درلوِد چي عبد الله نومبدئ په مكه كي په كوچنوالي مړ سوی ده طيب ئې هم نوم وو طاهر ئې هم نوم وو نو دري نومان ئې وو دارقطني وايي داقول ثابت او مظبوط ده چي عبد الله ته طيب اوطاهر هم ويل كېدل څكه تر نبوت ورسته پيداسو خيني علماء بيا وايي چي عبدالله له طيب او طاهر څخه پرته بل زوی ده دنبي عليه السلام خيني وايي چي دنبي عليه السلام دوه زامن طيب او مطيب غبر كوليان وو له يوه نس څخه وو او بياطاهر او مطهرله يوه نس څخه غبركوليان پيداسو .

دنبي عليه السلام تول اولاد له خديجة الكبرى رضي الله تعالى عنها څخه ده بغير له ابراهيم څخه څكه چي هغه له قبطي مينځي څخه پيدا سوی ده چي مارية رضي الله تعالى عنهاده په اتم[١٨] كال كي دهجرت پيداسو اويا[٢٠] شپي ئې

ژوند وکړ بیا وفات سو خیني علماء وایي شپاړس[١٦] میاشتي ژوندی وو بیا وفات سو ترمړک وروسته ئې نبي علیه السلام داسې وویل (القلب یحزن والعین تدمع ولاتقول إلا ما یسخط الرب وإنا على فراقك یا إبراهیم لمحزونون) یعني زړه غم کوي سترګه اوښکي تویوي موږ نه وایو هغه څه چي رب مو په غضب مې او موږ ابراهیمه ستا په فراق غمجن یو. او چي کله وفات سو دجنازې لمونځ ئې په بقیع وکړ او وي فرمایل (تدفنه عند فرطنا عثمان بن مظعون) یعني ښخوو ئې دخپل مخکي تللي سره چي عثمان بن مظعون رضي الله تعالی عنه ده چي دنبي علیه السلام رضاعي ورور وو.

(وَفَاطِمَة ورقية وَزَيْنَب وَأم كُلْثُوم كن جَمِيعًا بَنَات رَسُول الله صلى الله عَلَيْهِ وَسلم) په دې کښې اختلاف ده چي زینب رضي الله تعالی عنها دنبي علیه السلام مشره لور وه او که رقیهرضي الله تعالی عنها په دې وجه نسخې دکتاب مختلفې دي په خینو کي زینب رضي الله تعالی عنها مخکي ذکر سوې ده اوپه خینو کي رقیة رضي الله تعالی عنها خو اکثر علماء وایي چي زینب رضي الله تعالی عنها مشره وه دابو اسحاق په نبز زینب رضي الله تعالی عنها هغه وخت پیداسوه چي دنبي علیه السلام له ولادت څخه دیرش کال تیرسوي وو دااسلام زمانه ئې نبولې ده هجرت ئې کړی ده دابو العاص په نکاح کي وه چي ددې دخاله زوی هم وو یو زوی ئې دعلي په نامه پیداسوی ده هغه هم بلوغ ته نژدې وو چي وفات سو دمکي دفتح په ورځ دنبي علیه السلام شاته پر او ښه ورسره سپور وو یوه لور ئې درلوده چي امامه نومېده نبي علیه السلام دسهار په لمانځه کي پر اوږو اخیستې وه چي کله به ئې رکوع کوله دابه ئې کښته کړه او چي کله به له سجدې څخه را پورته سو دا به ئې هم راواخیستله او پر اوږه به ئې کړه دحضرت فاطمې رضي الله تعالی عنها تروفات وروسته حضرت علي بن ابي طالب رضي الله عنه په نکاح کړه.

حضرت فاطمه رضي الله تعالى عنها دنبي عليه السلام تر ولادت يوځلويښت
کاله وروسته پيداسوي ده تقديم ددې په ذکر کې پر رقيه او زينب رضي الله
تعالى عنهما باندي درتبې په لحاظ سوى ده په حديث کې راځي(وإنما سماها
فاطمة لأن الله فطمها ومحبيها من النار )يعني دا ځکه فاطمه نامداره سوه چې
الله تعالى به په ورځ دقيامت دا اوددې محبان دجهنم له اوره ځخه ساتي.
فاطمې رضي الله تعالى عنها ته بتول هم ويل ځکه دا جلا وه له هغه ښځو
ځخه چې ددې په زمانه کې وي په فضيلت کې ځيني علماء وايي بتول ځکه
ورته وايي چې ددې تعلق نه وو له دنياسره دحضرت علي رضي الله عنه په
نکاح کې وه نکاح ئې دهجرت په دوهم کال وسوه او نکاح ئې هم دالله جل
جلاله په امر او وحي سره وسوه حديث کې راځي(ان الله امرني ان ازوج فاطمة
من علي)يعني ماته الله جل جلاله ددې امر کړی چې زه فاطمه علي رضي الله
تعالى عنهما ته په نکاح ورکړم. نبي عليه السلام ته په ټول اهل کې دده
فاطمه زياته محبوبه وه کله چې به ئې دسفر اراده وکړه نو آخر رخصت به ئې
له دې ځخه اخستی او کله چې به له سفره راغلی نو اول وار به ددې خواته
ورتلی حديث کې راځي نبي عليه السلام فرمايي (إنما فاطمة بضعة مني فمن
أغضبهاأغضبني ) يعني فاطمه زما دبدن يوه ټوټه ده چا که دهغې سره بغض
کوی هغه زما سره بغض کوي په بل روايت کې راځي نبي عليه السلام فاطمې
ته وفرمايل (أما ترضين أنك سيدة نساء العالمين) يعني ايا ته نه ئې راضي په
دې سره چې ته دټولو ښځو دمؤمنانو سرداره يې .

دنبي عليه السلام تر وفات شپږ مياشتي وروسته وفات سوه په دغه وخت کې
ئې عمر نه ويشت[٣٩] کاله وو له حضرت علي رضي الله تعالى عنه ځخه ئې
دوه زامن پيدا سوی دي حضرت حسن او حسين رضي الله تعالى عنهما يو بل

زوی ئې دمحسن په نامه وو چې په کوچنوالي کې وفات سوی ده دوي ئې لوني وي يوه ام كلثوم بله زينب رضي الله تعالى عنهما دنبي عليه السلام ترشا نور لمسيان ندي پاته سوي پرته له اولاد دفاطمې رضي الله عنها دنبي عليه السلام نسل يوازې ددې د دوو زامنو حسن او حسين له لوري خپور

حضرت رقيه رضي الله تعالى عنها دنبي عليه السلام د ولادت په درو دبرشم[٣٣] كال پيدا سوې ده دعتبه په نكاح كې وه چې دابي لهب زوی وو او ددې بله خور ام كلثوم رضي الله تعالى عنها د ابولهب دبل زوی چې عتيبه نوميدئ په نكاح كې وه هر كله چې دا سورت نازل سو تَبَّتْ يَدَا أَبِي لَهَبٍ وَتَبَّ نو ابو لهب خپلو زامنو ته وويل چې زما سر ستاسو پر سرو حرام ده كه دمحمد له لونو جلا نه سواست يعني طلاق ور نكرئ نو عتبه او عتيبه دواړو دنبي عليه السلام لوني په دامې حال كې طلاق كړې چې نژدېكت ئې نه وو ورسره كړی تر دې ورسته بيا رقيه رضي الله تعالى عنها عثمان رضي الله تعالى عنه په مكه كې په نكاح كړه اوددې سره ئې دواړه هجرتونه وكړل يعني هجرت دحبشې او مدينې بيا په هغه ورځ وفات سوه چې نبي عليه السلام په بدر كې وو له ابن عباس رضي الله تعالى عنهما څخه روايت ده چې كله نبي عليه السلام ته درقيې رضي الله تعالى عنها تعزيت ور كول سو نو ده وويل (الحمد لله دفن البنات من المكرمات) يعني الله جل جلاله لره دحمد وي ښخول دلونو له فضائلو څخه دي

دحضرت ام كلثوم رضي الله تعالى عنها په باره كې راځي چې كله حضرت رقيه رضي الله تعالى عنها وفات سوه نو عثمان رضي الله تعالى عنه وحضرت عمر رضي الله تعالى عنه ته مركه وكړه دحفصې رضي الله تعالى عنها په باره كې خو دحضرت عمر رضي الله تعالى عنه خوښه نه سوه چې عثمان ته ئې په نكاح وركړي بيا داحال نبي عليه السلام ته ورسېدی نبي عليه السلام

حضرت عمر رضي الله تعالى عنه ته وويل (يا عمر ألا أدلك على خير لك من عثمان وأدل عثمان على خير له منك قال نعم يا رسول الله قال زوجني ابنتك وأزوج عثمان ابنتي) يعني اى عمره زه درونه ښيم تاته خير تر عثمان او عثمان ته خير تر تا عمر رضي الله تعالى عنه ورته وويل هو را وه نې ښيه نبي عليه وفرمايل ستا لور ماته په نكاح راكړه زه به خپله لور عثمان ته په نكاح وركړ.

ملاعلي قاري رحمه الله تعالى وايي امام اعظم رحمه الله تعالى دنبي عليه السلام دازواجو مطهراتو بيان نده كړى خو زه ئې اجمالا ذكر كوم امهات المؤمنين يعني دټولو مؤمنانو ميندي خديجه، سودة، عائشه، حفصه، ام سلمه، ام حبيبه، زينب بنت جحش، زينب بنت خزيمه، ميمونه، جزيريه، صفيه،رضي الله تعالى عنهن دا دنبي عليه السلام يوولس[11] بيبياني دي نكاح او كور والى ئې ور سره كړى ده په دې كښې دعلماء هيڅ ډول اختلاف نسته خو دامي ويل كيږي چې نبي عليه السلام له دوى بغير له نورو ښځو سره هم نكاح كړې ده والله اعلم

وَاذا أشكل على الإنسان شَيْء من دقائق علم التَّوحِيد فَإِنَّهُ يَنبَغِي لَهُ ان يعتَقد فِي الْحَال مَا هُوَ الصَّوَاب عِنْد الله تَعَالَى الى ان يجد عَالما فيسأله وَلَا يَسعهُ تاخير الطّلب وَلَا يعْذر بِالْوُقُوفِ فِيهِ وَيكفر إِن وقف وَخبر الْمِعْرَاج حق من رده فَهُوَ ضال مبتدع

---

او هركله چې مشكل او پوشيده مې پر انسان باندې يو مسئله له مسائلو څخه دعلم توحيد نو مناسب ده دلره دا چې عقيده ولري سمدستي دهغه څه چې حق وي په نيز دالله تعالى تر څو چې پيدا كوي يوعالم اوپوښتنه ځني كوي او روا نده ځنډول دطلب ئې او نه هم معذور بلل كيږي په توقف كولو سره او كافر كيږي كه توقف وكړي او دمعراج واقعه حق ده كه څوک ددې ترديد كوي هغه گمراه او بدعتي ده .

## تشريح

(وَاذا أشكل على الْإِنسَان شَيْء من دقائق علم التَّوحِيد)يعني كه چيري پر مؤمن باندې يو مسئله له مسائلو څخه دعلم توحيد پوشيده مې او حقيقت ئې نه ورته معلومبدی مثلا پوشيده سو پر ده باندې حدوث دعالم او يا حشر دهغه اجسادو چې خاوري سوي وي. مراد له دقائقو دعلم توحيد څخه هغه شيان دي چې په هغو كې شک اوشبهه له ايمان سره تكر لري او دالله جل جلاله پر ذات اوصفاتو باور او يقين ماتوي او يا دمؤمن به له معرفت سره تضاد لري. داخبره تكر نه لري له دې سره چې امام صاحب خو په خپله په خينو مسائلو كې توقف كړي ده خكه هغه توقف په احكامو كې ده په شرعي احكامو كې توقف رحمت ده او اختلاف په توحيد كې ضلالة او بدعة ده .

(فَإِنَّهُ يَنبَغِي لَهُ ان يعتَقد فِي الْحَال مَا هُوَ الصَّوَاب عِنْد الله تَعَالَى الى ان يجد عَالما فيسأله)يعني ورباندې واجب ده چې په اجمالي توګه دا عقيده ولري چې دالله

جل جلاله په نبز چې کوم شی حق وي بس هغسي ده. همدا کافي دلره تر څو چې پيداکوي يو داسي څوک چې هغه عالم وي په مسائلو دعلم توحيد باندي او پوښتنه کوي له هغه څخه دهغه مسائلو چې پر ده باندي پوشيده دي په تفصيلي توګه

(وَلَا يَسعهُ تاخير الطّلب)يعني روانده خندول دطلب ني بلکه طلب کول ني واجب او فرض دي پر انسان باندي لکه چې الله جل جلاله فرمايي(فَاعلَمْ أنَّهُ لَا إلَهَ إلَّا اللَّهُ)محمد_يعني پوه سه چې له الله جل جلاله څخه پرته بل لانق دعبادت نشته. په دې آيت کې الله تعالی امر کوي په علم سره او امر دوجوب لپاره ده. په بل خای کې الله تعالی فرمايي(فَاسألُوا أهْلَ الذِكْرِ إنْ كُنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ (٤٣) النحل_يعني پوښتنه وکړئ دعلم له خاوندانو څخه که چيري تاسي نه پو هيږئ

(وَلَا يعْذر بِالْوُقُوفِ فِيهِ)يعني دی معذور نه بلل کيږي شرعا په داسي صورت کې چې پر ده باندي يو شی له ضروورياتو ددين څخه پوشيده وي او دی توقف کوي په هغه کې رجوع نکوي وايمان اجمالي ته يعني داسي نه وای چې زه عقيده لرم پر هغه څه چې هغه حق دي په نبز دالله تعالی بلکه واجب ده پر ده باندي چې رجوع وکړي وايمان اجمالي ته او له هغه څخه ورسته پوښتنه وکړي له هغه چا چې هغه علم لري پر مسائلو دتوحيد باندي

(وَيكفر إن وقف)يعني کافر کيږي که توقف وکړي په مؤمن به کې خکه توقف په مؤمن به شيانو کې تصديق منع کوي او چې کله ووايي زما ايمان ده پرالله تعالی باندي اوعقيده لرم پر هغه شيانو چې هغه حق دي په نبز دالله تعالی نو دانوايمان اجمالی ده کافي دلره ترڅوچې دی پوښتنه کوي له خاوندانو دعلم څخه تفصيلا

(وَخبر المِعرَاج حق)يعني دا واقعه چې نبي عليه السلام پورته سو اسمان ته اوبيا هغه خاى ته چې دالله تعالى خوښه وه حق ده.قاضي عياض په شفا كې وايي چې علماو اختلاف كړى په دې كښې چې اسراء په روح سره وه او كه په جسد سره يوې ډلي دعلماء تګ كړى دې خبرې ته چې دا په روح سره وه يعني په خوب كې وه. ډير علماء بيا وايي چې دا په جسد سره وه او په حالت كې دبيدارى وه همدا خبره حق ده.اوځيني علماء وايي چې تر بيت المقدس پوري په جسد سره وه او له هغه ځخه بيا تر اسمان پوري په روح سره وه (من رده فَهُوَ ضَال مُبْتَدِع)يعني كه چا دغه خبر رد كړه او انكار ئې وكړ له دې ځخه هغه سړى ګمراه اوبدعتي ده خكه پورته كېدل دنبي عليه السلام په جسد سره په وېښه ثابت ده په مشهور حديث سره،په كتاب الخلاصه كې راځي كه څوك منكر سو له اسراء ځخه نو كه له هغه اسراء ځخه منكر سو چې له مكې ځخه تر بيت المقدس پوري وه نو داكافر ده خكه دا اسراء په آيت سره ثابته ده هغه قطعية الدلالة ده(سُبْحَانَ الَّذِي أَسْرَى بِعَبْدِهِ لَيْلًا مِنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ إِلَى الْمَسْجِدِ الأَقْصَى)يعني پاكي ده هغه ذات لره چې بو ئې تلى خپل بنده په شپه كې له مسجد حرام ځخه و مسجد اقصى ته. اوكه منكر سو له هغه اسراء ځخه چې له بيت المقدس ځخه وه بيا تر اسمان پوري بيا كافرنده خكه دا اسراء په حديث ثابته ده هغه ظنية الدلالة ده

وَخُروج الدَّجَّال ويأجوج ومأجوج وطلوع الشَّمس من مغربِهَا ونزول عِيسَى عَلَيْهِ السَّلَام من السَّمَاء وَسَائِر عَلَامَات يَوْم الْقِيَامَة على مَا وَردت بِهِ الْأَخْبَار الصَّحِيحَة حق كَائِن وَالله تَعَالَى يهدي من يَشَاء إِلَى صِرَاط مُسْتَقِيم

او راوتل ددجال اود ياجوج او ماجوج او راختل دلمر دمغرب له خوا او راکښته کېدل دعيسى عليه السلام له اسمان څخه او نورې علامې دقيامت چې ثابتې دي په صحې حديثو سره حق اوثابت دي او الله تعالى هدايت کوي هغه چا ته چې خوښه ئې سي وسمې لارې ته

## تشريح

(وَخُروج الدَّجَّال)يعني راوتل ددجال حق دي نبي عليه السلام فرمايي(ما بين خلق آدم إلى قيام الساعة أمر أكبر من الدجال)يعني دادم عليه السلام له پيدايښت څخه بياتر درېدو دقيامت په دې ټوله زمانه کې ددجال تر فتني غټه فتنه نسته

(ويأجوج ومأجوج)دا دوې قبيلې دي له اولاد څخه ديافث بن نوح عليه السلام لکه چې الله تعالى فرمايي(حَتَّى إِذَا فُتِحَتْ يَأْجُوجُ وَمَأْجُوجُ وَهُمْ مِنْ كُلِّ حَدَبٍ يَنْسِلُونَ(٩٦)الانبياء_يعني تر دې پورې چې کله دياجوج او ماجوج لاره خلاصه سي او هغه له هر لوړ ځاى څخه په چابکې سره راځي

(وطلوع الشَّمس من مغرِبهَا)يعني راختل دلمر دلوېدو له طرف څخه لکه چې الله جل جلاله فرمايي (يَوْمَ يَأْتِي بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ لَا يَنْفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِنْ قَبْلُ أَوْ كَسَبَتْ فِي إِيمَانِهَا خَيْرًا)الانعام_ يعني په هغه ورځ چې ستا درب خيني أيات ښکاره سي نوبيا به هيچاته دهغه ايمان گټه نه ورسوي که ئې مخکې نه وو راوړى اويا ئې کسب نه وو کړى دخير په خپل ايمان کې. يعني کافر ته به په دغه ورځ ايمان راوړل گټه نه ورسوي کله چې لمر دلوېدو له

خوا را پورته سي او نه هم فاسق ته په دغه ورځ نیک عمل کومه فائده ورسوي

(ونزول عِيسَى عَلَيْهِ السَّلَام من السَّمَاء)يعني راکښته کېدل دعيسی عليه السلام لکه چې الله تعالی فرمایي(وَإِنَّهُ لَعِلْمٌ لِلسَّاعَةِ)الزخرف يعني دعيسى عليه السلام نزول دقيامت علامه ده. په بل خای کې الله تعالی فرمایي(وَإِنْ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ)النساء يعني له اهل کتابو څخه هيڅوک داسي نسته چې پرعيسی عليه السلام باندي دده ترمرګ مخکې ايمان رانه وړي يعني د عيسى عليه السلام تر نزول ورسته او دده تر مرګ مخکې به ټول اهل کتاب ايمان راوړي

ملاعلي قاري وايي په بله نسخه کې طلوع الشمس من المغرب مخکې ذکر سوی ده پر دا نورو علامو باندي خو پر هر صورت واو د مطلقي جمعيت لپاره ده کنه نو اصل ترتيب داسي ده چې اول وار به امام مهدی په حرمينو کې ښکاره سي بيا به بيت المقدس ته راسي دجال ته به ورسي په همدغه وخت کې به عيسى عليه السلام دشام د دمشق له مشرقي مناري څخه راکښته سي د دجال دمقابلي لپاره به راسي او دجال به قتل کړي دعيسى عليه السلام په را کښته کېدو سره به دجال داسي ويلې سي لکه مالګه په اوبو کې عيسي عليه السلام به دامام مهدی سره يو خای سي وخت به هم دلمانځه وي امام مهدی به عليه السلام ته دمخته کېدو اشاره وکړي عيسى عليه السلام به له مخته کېدو انکار وکړي او ورته وبه وايي چې دا لمونځ ستا لپاره راغلی ده يعني ستا به امامت کې راغلی ده نو ته دامامت لائق ئې.عيسى عليه السلام به امام مهدی پسې اقتداء وکړي

په حديث کې راځي(فيمكث أربعين سنة ثم يتوفى ويصلي عليه المسلمون)يعني درنګ به وکړي څلوېښت کاله[٤٠] په مځکه کې بيا به وفات سي او مسلمانان

به نې دجنازې لمونځ وکړي او دفن به نې کړي په ځينو رواياتو کې راځي چې دنبي عليه السلام او ابو بکر الصديق رضي الله تعالى عنه تر منځ به دفن کړل سي داسي روايت هم سوى ده چې دابوبکر او عمر رضي الله تعالى عنهما تر منځ به دفن کړل سي والله اعلم

په يو بل روايت کې راځي چې اوه کاله[٧] به په ځمکه کې ژوند وکړي ځيني علماء وايي چې دا صحيح قول او په اول روايت کې چې دڅلوېښتو کالو ذکر سوى ده دهغه معنى داده چې اسمان ته تر ختلو مخکې او تر راکښته کېدلو ورسته ټول څلوېښت کاله دي ځکه چې کله دى اسمان ته پورته کړل سو عمر درو دېرش کاله وو

(وَسَائِر عَلَامَات يَوم الْقِيَامَة على مَا وَردت بِهِ الْأَخْبَار الصَّحِيحَة حق كَائِن)لکه حديث کې دحذيفه رضي الله تعالى عنه راځي(قال إنها لن تقوم حتى تروا قبلها عشر أيات فذكر الدخان والدجال والدابة وطلوع الشمس من مغربها ونزول عيسى بن مريم ويأجوج ومأجوج وثلاثة خسوف خسف بالمشرق وخسف بالمغرب وخسف بجزيرة العرب وأخر ذلك نار تخرج من اليمن تطرد الناس إلى محشرهم)يعني قيامت نه درېږي تر څو تاسو لس علامې ونه وينى بيا نبي عليه السلام ذکر کړ دود اوخروج ددجال او راوتل ديو حيوان چې له خلکو سره به خبرې کوي او راختل دلمر دلوېدو له خوا او راکښته کېدل دعيسى عليه السلام له اسمان څخه او راوتل دياجوج او ماجوج او درې خسفه يعني ننوتل په ځمکه کې چې يو حسف به دمشرق په طرف کې وي بل دمغرب بل په جزيره کې دعربو او اخرددې به اور وي چې را وزي به له يمن څخه شړي به خلک ومحشر ته

**الحمد الله رب العلمين و ا صلوة والسلام على سيد الانبياء والمرسلين وعلى آله وصحبه اجمعين كتبه الاحقر ابو منصور عبد الكريم شهيد زاده اللهم اغفر له ولوالديه**

# كتاب الوصية للامام ابي حنيفة رحمة الله تعالى عليه

## تنبيه

داچي دامام اعظم رحمه الله تعالى كتاب الوصية له فقه اكبر سره يوځاى مطبوع سوى ده نو له دې وجه مونږ هم له شرح سره دفقه اكبر شرح د ځينو عباراتو دكتاب الوصية يو ځاى كړه كه څه هم اكثر مباحث ددې مخكي په تشريح كي دمسائلو دفقه اكبر ذكر سوي دي

الإيمانُ إقرارٌ باللسان وتصديقٌ بالجنان والإقرارُ وحده لا يكونُ إيماناً لأنه لو كان إيماناً لكانَ المنافقونَ كلّهم مُؤمنين وكذلك المعرفةُ وحدها لا تكونُ إيماناً لأنها لو كانت إيماناً لكانَ أهلُ الكتابِ كلّهم مُؤمنين قال الله تعالى في حقّ المنافقين واللهُ يَشْهَدُ إنَّ المُنَافِقِينَ لَكَاذِبُونَ وقال تعالى في حقّ أهلِ الكتاب الذينَ آتَيْنَاهُمُ الكِتَابَ يَعْرِفُونَهُ كَمَا يَعْرِفُونَ أَبْنَاءَهُمْ

ايمان اقرار ده په ژبه سره او باور ده په زړه سره او يوازې اقرار ايمان نده خكه كه چيري سي نومنافقان به تول مؤمنان واى دارنكه معرفت يوازې ايمان نده خكه كه چيري سي نو اهل كتاب به تول مؤمنان واى وېلي دي الله تعالى په حق كي دمنافقانو واللهُ يَشْهَدُ إنَّ المُنَافِقِينَ لَكَاذِبُونَ (يعني الله جل جلاله شاهدي وركوي چي بېشكه منافقان دروغجن دي)او وېلي دي الله تعالى په حق كي داهل كتابو الذينَ آتَيْنَاهُمُ الكِتَاب يَعْرِفُونَهُ كَما يَعْرِفُونَ أَبْنَاءَهُمْ (يعني هغه كسان چي موږ دوى ته كتاب وركړى ده هغوى پېژني پيغمبر لكه څنكه چي پېژني خپل زامن

## تشريح

(الإيمانُ إقرارٌ باللسان وتصديقٌ بالجَنان)ايمان په لغت كي تصديق اوباور ته وېل كيږي لكه په دې قول كي دالله تعالى چي اخبار كوي له ورنو ديوسف عليه السلام(وَمَا أَنتَ بِمُؤْمِنٍ لَنَا)يوسف_ يعني ته مصدق او باور كوونكى نه يې موږ لره. او په اصطلاح كي دمتكلمينو علماء ايمان وېل كيږي تصديق ته دنبي عليه السلام په تولو هغه امورو كي چي نبي عليه السلام راوړي دي موږ ته دالله تعالى له جانبه نو په تصديق كي دنبي عليه السلام تصديق سته دتولو هغه شيانو چي تصديق كول پرباندې واجب دي. او اقرار په ژبه سره شرط ده لپاره د اجراء داحكامو داسلام پر ده باندې دامذهب ده دامام اعظم رحمه

الله تعالى او همدې خبري ته تګ کړی ده امام الهدی ابو منصور ماتريدي رحمة الله تعالى عليه که څه هم له کلام څخه دامام صاحب دلته په ظاهره دامعلوميږي چي اقرار جزء اورکن ده دايمان لکه تصديق

دلته يو سوال واردېږي هغه دا چي پر دواړو تقديرو که اقرار رکن سي دايمان او که شرط سي لپاره داجراء داحکامو حق دتقديم تصديق لري ځکه که اقرار شرط سي بيا خو ښکاره خبر ده چي تصديق حق لري دتقديم او که اقرار رکن سي بيا په دې وجه چي تصديق داسي رکن ده چي هيڅکله سقوط نه قبلوې او اقرار کله کله سقوط قبلوي په سبب دعذر نو بيا ولې امام صاحب اقرار مخکي کړ پر تصديق باندي

ددې شبهې جواب داده چي تصديق په زړه سره يو باطني شی چي خبرتيا نسي راتلای ورباندي او اقرار په ژبه سره دليل ده پر تصديق باندي نوپه دې خاطر ئې اقرار مخکي راوړی پر تصديق باندي

اختلاف سته په دې کښې چي ايمان شرعا واجب ده اوکه عقلا دمعتزله و رايه داده چي ايمان عقلا واجب ده يعني که پيغمبر نه وای راغلی نو هم به پر خلکو باندي واجب وای ايمان راوړل پر الله تعالى باندي او اشاعره بيا وايي چي ايمان شرعا واجب ده

همداسي اختلاف سته په دې کښې چي ايا حسن دايمان او قبح دکفر په عقل سره پېژندل کېدای سي اوکه يامعتزله وايي چي په عقل سره پژندل کيږي حسن دايمان اوقبح دکفر او عقل واجبوي ايمان او حراموي کفر اشاعره وايي په عقل سره هيڅ شی نه واجبيږي او نه هم په عقل سره درک دحسن او قبح دشيانو کېدای سي

زمونږ صماتریدیه و مذهب داده چې عقل صرف یو آله ده پېژندل کیږي په ده سره حسن اوقبح دخینو شیانو او وجوب دایمان فرق زمونږ او دمعتزله و په دې کښې ده چې معتزله وایې عقل بالذات موجب ده او مونږ وایو چې موجب الله تعالی ده عقل یو آله ده دپېژند لو دوجوب لکه پیغمبر معرف ده وجوب لره او موجب الله تعالی ده

(والإقرارُ وحدَه لا يكونُ إيماناً لأنه لو كان إيماناً لكانَ المنافقونَ كلّهم مُؤمِنين)

یعني یوازې اقرار دژبې ببله تصدیق څخه دزړه ایمان نده څکه که یوازې اقرار ایمان سي نو منافقان خو به ټول مؤمنان وای او داسې نده څکه الله جل جلاله د دوی په حق کې وایې(واللهُ يَشْهَدُ إنَّ المُنَافِقِينَ لَكَاذِبُونَ) په دې آیت کې الله تعالی دوی ته تکذیب ثابت کړ او شک نسته په دې کښې چې منافقانو اقرار کوی

(كذلك المعرفةُ وحدها لا تكونُ إيماناً لأنها لو كانت إيماناً لكانَ أهلُ الكتابِ كلّهم مُؤمِنين)یعنې دارنګه یوازې پېژندل هم ایمان نده څکه که ایمان سي نو اهل کتاب یهود او نصاری به ټول مؤمنان وای څکه دوی ټولو ته دنبي علیه السلام نوم اوصاف او بعثت هرڅه معلوم وو لکه چې دلالت کوي پر دې خبره باندې داقول دالله تعالی(الذينَ آتَيْنَاهُمُ الكِتَابَ يَعْرِفُونَهُ كَمَا يَعْرِفُونَ أبْنَاءَهُمْ)حدیث کې راځي کله چې نبي علیه السلام مدینې ته راغلی نو عمر بن الخطاب رضي الله تعالی عنه وعبد الله بن سلام رضي الله تعالی عنه وویل چې الله جل جلاله دغه آیت نازل کړی ده(الذينَ آتَيْنَاهُمُ الكِتَابَ يَعْرِفُونَهُ كَمَا يَعْرِفُونَ أبْنَاءَهُمْ)داڅنګه معرفت ده ده مبارک ورته وویل ای عمره په الله جل جلاله قسم چې داسې لې پېژنم لکه خپل زوی چې پېژنم او تر زوی نې لا ښه پېژنم حضرت عمر رضي الله عنه ورته وویل څنګه ده مبارک ورته وویل داڅکه چې زه شاهدې ورکوم په یقین سره چې دی دالله تعالی رسول ده او زه

پر خپل زوی باندي داشاهدي نه ورکوم چې دازما زوی ده خکه زه نه یم خبرښايي مورئي خيانت کړی وي حضرت عمر رضي الله تعالى عنه دی پر سر باندي مچ کړ او ورته وي ويل ته صادق ئي

والإيمانُ لا يزيدُ ولا ينقُصُ لأنه لا يُتصوَّرُ نقصانُهُ إلا بزيادةِ الكُفرِ ولا تُتصوَّرُ زيادتُهُ إلا بنُقصانِ الكُفرِ وكيف يجوزُ أن يكونَ الشخصُ الواحدُ في حالةٍ واحدةٍ مؤمناً وكافراً والمؤمنُ مؤمنٌ حقّاً والكافرُ كافرٌ حقّاً وليسَ في الإيمانِ شكٌّ كما أنه ليس في الكُفرِ شكٌّ لقوله تعالى أولئكَ هُمُ المُؤمِنُونَ حقاً أولئكَ هُمُ الكافِرُونَ حقاً والعاصون من أمةِ محمدٍ صلى الله عليه وسلم كلّهم مؤمنون وليسوا بكافرين

---

او ايمان نه زياتيږي او نه کميږي خکه نقصان دايمان ممکن نده مګر په زيادت دکفر سره او ممکن نده زيادت دايمان مګر په نقصان دکفر سره نو څنګه روا ده چې يو شخص دي په يوه حالت کي هم مؤمن وي او هم کافر او مؤمن مؤمن ده په حقه سره او کافر کافر ده په حقه سره او نسته په ايمان کي شک لکه څنګه چې په کفر کي شک نسته خکه الله جل جلاله وايي په حق کي دمؤمنانو (أولئِكَ هُمُ المُؤمِنُونَ حقاً)يعني دوی مؤمنان دي په حقه سره او په حق کي دکافرانو وايي(أولئِكَ هُمُ الكافِرُونَ حقاً)يعني دوی په حقه سره کافران دي او ګناه ګاران دامت دمحمد صلى الله عليه وسلم ټول مؤمنان دي کافران ندي

## تشريح

(والإيمانُ لا يزيدُ ولا ينقُصُ)کله چې داخبره ثابته سوه چې ايمان عبارت ده له تصديق څخه دبنده او تصديق في نفسه زيادت نه قبلوي نودا دلالت کوي پر

دې خبره باندې چې ايمان نه زياتيږي په عباداتو سره او نه هم کميږي په گناوو سره ځکه تصديق په دواړو حالاتو کې په بنده پورې قائم ده

(لأنه لا يُتصوَّرُ نقصانُهُ إلا بزيادةِ الكُفرِ ولا تُتصوَّرُ زيادتُهُ إلا بنقصانِ الكُفرِ)

دادليل ده دمخکنى خبرې بيان ئې داده چې نقصان په ايمان کې ديو چا ممکن نده او نه هم راتلاى سي تر څو دده کفر زيات نسي دارنګه زيادت دايمان ممکن نده تر څودده په کفر کې نقصان را نسي او دغه اجتماع دايمان او کفر په يوه ذات کې په يوه حالت کې ممکن نده ځکه ايمان تصديق ته ويل کيږي دنبي عليه السلام په ټولو هغه امورو کې چې ده راتګ کړى په هغو سره له جانبه دالله تعالى او کفر تکذيب ته دده ويل کيږي او دا دواړه يو له بله سره ضد دي نو څنګه ممکن ده اجتماع د ضدينو په يوه محل کې دېته اشاره وکړه امام صاحب په دې قول سره وكيف يجوزُ أن يكون الشخصُ الواحدُ في حالةٍ واحدةٍ مؤمناً وكافراً

(والمؤمنُ مؤمنٌ حقّاً والكافرُ كافرٌ حقّاً)يعني مؤمن مؤمن ده په حقه سره او کافر کافر ده په حقه سره ځکه ايمان يو امر حقيقي ده تعريف ئې معلوم ده چې تصديق دنبي عليه السلام ده په ټولو هغو امورو کې چې ده راوړي دي له جانبه دالله تعالى او کفر بيا تکذيب دنبي عليه السلام ده نو هغه څوک چې په ده پورې تصديق ولاړ وي هغه مؤمن ده په حقه سره او هغه څوک چې په ده پورې خلاف ددتصديق ودريږي هغه کافر ده په حقه سره لکه هغه څوک قاعد ده چې قعود پورې ولاړ وي او سواد پورې ودريږي اسود ده او داسي نور

(وليسَ في الإيمانِ شكٌّ كما أنه ليس في الكُفرِ شكٌّ)يعني په ايمان کې دمؤمن شک نسته لکه په کفر کې دکافر چې شک نسته نو دا نده صحيح چې يو څوک ووايي زه مؤمن يم انشاء الله ځکه داکلام په هغه شى کې ويل کيږي چې ده هغه په ثبوت کې شک وي نه په هغه شى کې چې هغه ثابت وي قطعا. اوکوم

قول چې دعبد ابن مسعود رضي الله تعالى عنه څخه رانقل سوی ده چې دی وايي انا مؤمن انشاء الله داموږ نه حمل کوو پر شک باندي بلکه دا موږ حمل کوو پر تبرک باندي

(والعاصون من أمة محمد صلى الله عليه وسلم كلّهم مؤمنون وليسوا بكافرين) يعني گناه گاران دامت دنبي علیه السلام کافران ندي. په دې کښې اختلاف ده چې یوڅوک مرتکب مي دکبیرې گناه په داسي حال کي چې روا نې نو بولي او نه هم په طریقه داستخفاف وي چې ایا دغه کافر ده او که یا؟ داهل السنة والجماعة مسلک داده چې مؤمن دگناه په وجه له ایمان څخه نه وزي څکه تصدیق ئې باقي وي. او گناه گار چې کله مړ سي بغیر له توبې څخه نو هغه دالله تعالی تر مشیئت لاندي ده که دالله تعالی خوښه سوه بخښه به ورته وکړي اوجنت ته به ئې داخل کړي په خپل فضل سره یا په برکت سره دایمان یا په شفاعت سره دنیکانو خلکو او که ئې خوښه سوه عذاب به ورکړي په قدر دگناه پای به یې دخول وجنت ته وي همیشه به په عذاب کي نوي. دخوارجو مذهب داده چې مرتکب دگناه که لویه گناه وي او که وړه کافر ده دهمیشه لپاره په عذاب کي وي. او معتزله وايي چې مرتکب دکبیرې گناه فاسق ده نه مؤمن ده نه کافر په دې گناه سره دی وزي له ایمان څخه او داخلیږي هم نه په کفرکي نو دوی ثابتوي مرتبه په مابین کي دکفر او ایمان

العَمَلُ غيرُ الإيمانِ والإيمانُ غيرُ العملِ بدليلِ أنَّ كثيراً من الأوقاتِ يرتفعُ العملُ عن المؤمنِ ولا يجوزُ أن يُقال ارتفعَ عنه الإيمانُ فإنَّ الحائضَ ترتفعُ عنها الصَّلاةَ ولا يجوزُ أن يُقال رُفعَ عنها الإيمانَ اوأُمِرَ لها بتَرْكِ الإيمانِ وقد قالَ لها الشَّرعُ دَعِي الصَّومَ ثمَّ اقضيهِ ولا يجوزُ أن يُقال دَعِي الإيمانَ ثمَّ اقضيهِ ويجوزُ أن يُقال ليس على الفقير الزكاةُ ولا يجوزُ أن يُقال ليس على الفقير الإيمانُ. ولو قال تقديرُ الخيرِ والشرِّ من غيرِاللهِ تعالى كان كافراًباللهِ تعالى وبَطَلَ توحيدُهُ لوكان له التوحيد

---

عمل غير ده له ايمان څخه او ايمان غير ده له عمل څخه په دې دليل سره چې په ډيرو وختوكې عمل پورته كيږي له مؤمن څخه او دا روا نده چې وويل سي ايمان ځني پورته سو ځكه دحائضې ښځې څخه لمونځ پورته كيږي او دا روا نده چې وويل سي پورته سو ايمان ځني او يا امر وسو دې لره په ترک دايمان او په تحقيق سره ويلي دي ښځې ته شرع چې پرېږده روژه او بيائې قضا راوره او دا نده روا چې وويل سي پرېږده ايمان بيائې قضا راوره او دا روا ده چې وويل سي پرفقير باندي زكاة نسته او دا نده روا چې وويل سي نسته پر فقير باندي ايمان،او كه ئې وويل چې تقدير(اندازه) دخير او شر دالله څخه بغير دبل چا له جانبه ده نو كافر ده په الله تعالى سره او باطل ده توحيد دده كه چيري وو دلره توحيد

## تشريح

(العَمَلُ غيرُ الإيمانِ والإيمانُ غيرُ العملِ)دعلماء اختلاف ده په دې كښې چې اعمال له ايمان څخه دي او كه يا دامام اعظم رحمه الله تعالى مذهب داده چې اعمال غير دي له ايمان څخه او ځيني علماء وايي چې ايمان هو التصديقُ بالجَنانِ والاقرارُ باللسانِ والعملُ بالأركانِ نو ددوی په نيز اعمال جزء دي له ايمان څخه. زموږ دليل داده چې الله جل جلاله په قران كي په ډيرو ځايو كي

عطف کړیدي اعمال پر ایمان باندي لکه په دې آیت کي(إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ) او ددې په مثل په نورو آیاتو کي او معطوف مغایر وي له معطوف علیه سره. بل دلیل داده چي ایمان شرط ده لپاره داعمالو الله جل جلاله فرمایي(وَمَنْ يَعْمَلْ مِنَ الصَّالِحَاتِ وَهُوَ مُؤْمِنٌ) طه_ یعني هغه څوک چي نیک عمل وکړي په داسي حال کي چي مؤمن وي. او شرط مغایر وي له مشروط څخه. امام اعظم رحمه الله تعالی دلیل راوړي پر دې خبره باندي په دي قول سره بدلیلِ أنَّ کثیراً من الأوقاتِ الخ

(ولو قال تقدیرُ الخیرِ والشرِّمن غیراللهِ تعالی کان کافراًبالله تعالی وبَطَلَ توحیدُهُ لوکان له التوحید)دا څکه چي الله تعالی دټولو ممکناتو خالق ده او له جملې څخه دممکناتو شر هم ده نو الله تعالی خالق دشر ده نو هر څوک چي وایي د شر خالق الله تعالی نده هغه کافر ده څکه دا شرک ده له الله تعالی سره الله جل جلاله فرمایي(قُلْ كُلٌّ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ)ورته ووایه ای پیغمبره چي ټول دالله تعالی له جانبه دي یعني که خیر ده او که شر. حدیث کي راځي(القدر خیره وشره من الله تعالی)

نُقِرُّ بأن الله تعالى على العَرشِ استوى من غيرِ أن تكونَ له حاجةٌ واستقرارٌ عليه وهو حافِظُ العَرشِ وغيرِ العرشِ فلو كان مُحتاجاً لَما قَدَرَ على إيجادِ العالَمِ وتدبيرِه كالمخلوق ولو صار محتاجاً إلى الجلوس والقرار فقبلَ خَلْقِ العرشِ أين كان الله فهو منزه عن ذلك علواً كبيراً

موږ اقرار په دې سره چې الله جل جلاله استواء کړیده پر عرش باندي بېله دې چې وي دي دلره حاجت او استقرار پرهغه باندي او الله تعالى ساتونکی ده دعرش او دغیر عرش نوکه چېري محتاج وای نو قادر به نوای پر پیداکولو دعالم او پر تدبیر دهغه لکه مخلوق او که چېري الله تعالى محتاج سي وکښیناستلو او قرار ته نو مخکې تر پیداکولو دعرش په کوم خای کي وو نو الله تعالی پاک او منزه ده له دې څخه

## تشريح

(نُقِرُّ بأن الله تعالى على العَرشِ استوى الخ)پوه سه وروره چې دالله جل جلاله له ذات څخه ماسوا ټول مخلوق ته عالم ویل کېږي او ټول سره نوي پیداسوي دي خکه دوی تغیر خوري او هر متغیر شی حادث وي نو په دې صورت کي دا محاله ده چې الله جل جلاله دي متمکن وي په یو مکان خکه خالی والی له مکان څخه والله جل جلاله ته ثابت وو په ازل کي نو که دمخلوق تر پیداکولو ورسته الله جل جلاله متمکن سي په یو مکان کي نو تغیر به راسي له هغه حال څخه چې پر کوم حال الله تعالى وو په ازل کي او تغیر له علامو دحدوث څخه ده راتلل ئې په قدیم کي محال ده دې خبرې ته امام صاحب اشاره وکړه په دې قول سره فقبلَ خَلْقِ العرشِ أين كان الله

مشبهه او مجسمه بيا وايي چې الله جل جلاله متمکن ده پر عرش باندي دليل
نيسي په دې قول سره دالله تعالى(الرَّحْمَنُ عَلَى الْعَرْشِ اسْتَوَى(٥)طه_ خو
ددوى ددې دليل جواب داده چې دغه آيت له متشابهاتو څخه او په
متشابهاتو کې داسلافو مسلک داده چې تفويض ئې کوي والله جل جلاله ته
اشاره کوي دبته داقول دامام اعظم رحمه الله تعالى نُقِرُّ بأن الله تعالى على
العَرشِ استوى من غيرِ أن تكونَ له حاجةٌ واستقرارٌ عليه

نقر بأن القرآنَ كلامُ الله ووحيُه وتنزيلُه وصفتُه لا هو ولا غيرُه بل هو صفتُه على التحقيق مكتوبٌ في المصاحف مقروءٌ بالألسنة محفوظٌ في الصدور غيرُ حالٍّ فيها والحِبرُ والكاغدُ والكتابةُ كلّها مخلوقةٌ لأنها أفعالُ العباد وكلامُ الله سبحانه وتعالى غيرُ مخلوق لأنَّ الكتابةَ والحروفَ والكلماتِ والآياتِ آلةُ القرآن لحاجة العباد إليها وكلامُ الله تعالى قائمٌ بذاته ومعناه مفهومٌ بهذه الأشياء فمَن قال بأن كلام الله تعالى مخلوقٌ فهو كافرٌ بالله العظيم والله تعالى معبودٌ لا يزال كما كان وكلامُه مقروءٌ ومكتوبٌ ومحفوظٌ من غير مزايلةٍ عنه

---

موږ اقرار كوو په دې سره چې قران دالله جل جلاله كلام ده او دده وحي اودده له لوري نازل سوى ده او دده صفت ده نه عين ذات دالله تعالى ده او نه له ده څخه غير ده بلكه دالله تعالى صفت على التحقيق ليكل سوى ده په مصاحفو كې ويل كيږي په ژبو سره محفوظ ده په سينو كې ور پكښې حال نده او رنګ اوكاغذ اوكتابت ټول مخلوق دي څكه دا دبندګانو افعال دي او كلام دالله تعالى مخلوق نده اوكتابت او حروف اوكلمات اوايات ټول دقران دفهمولو لپاره الات دي څكه بندګان په فهمولو كې دقران ورته محتاج دي اودالله جل جلاله كلام قائم ده په ذات دده پوري او معنى ئې فهمول كيږي په دغه آلاتو سره نو كه چا وويل چې دالله كلام مخلوق ده نو كافر ده په الله تعالى سره او الله تعالى معبود ذات ده تل به وي په خپلو صفاتو سره لكه چې وو او كلام ئې ويل كيږي اوليكل كيږي او په سينو كې حفظ كيږي ببله دي چې دالله تعالى څخه دي زائل سي

## تشريح

(نقرُّ بأن القرآنَ كلامُ الله ووحيُه وتنزيلُه الخ)دټولو انبياء عليهم الصلوة والسلام څخه په اجماع او تواتر سره ثابته ده چې الله جل جلاله متكلم ده او

دټولو مسلمانانو اتفاق ده پر دې خبره باندي چي پر الله جل جلاله باندي اطلاق دمتکلم کیږي خواختلاف سته په معنی کي ددې مونږ وایو چي کلام دالله تعالی یو صفت ده چي قائم ده په ذات دالله تعالی پوري غیرمخلوق ده له جنس څخه دحروفو او اصواتو نده لیکل کیږي په مصاحفو کي په واسطه دحروفو او کلماتو سره ویل کیږي پر ژبو په واسطه دالفاظو سره ساتل کیږي په سینو کي په واسطه دالفاظو خیالیه و سره نه عین ذات دالله تعالی ده او نه هم غیر له ذات څخه دالله تعالی لکه دا نور صفات دالله تعالی

معتزله وایي چي کلام د الله تعالی مخلوق ده قائم نده په ذات دالله پوري او الله تعالی ته متکلم ویل کیږي په دې معني چي الله تعالی پیداکړیدي اوازونه او حروف په مخلوق کي ملاعلي قاري رحمه الله تعالی وایي چي زمونږ او دمعتزله و ترمنځ داختلاف اصلي تکی دکلام نفسي داثبات یا نفي مسئله ده که نه نو نه مونږ ددې قائل یو چي الفاظ او حروف قدیم دي او نه دوی ددې قائل دي چي کلام نفسي حادث ده خو معتزله چي کوم دلیل وایي چي قران متصف ده په صفاتو دمخلوق او حدوث سره لکه تالیف، تنظیم، نزول، تنزیل، عربي، مسموع، فصیح ده، معجزده، او داسي نور نوځکه مخلوق ده ددوی دا دلیل پر مونږ باندي حجة نده ځکه مونږ خو نظم حادث بولو اصل خبره په هغه معنی کي ده چي قدیمه ده مونږ هغه معنی کلام نفسي او قدیم بولو .

نقر بأَنَّ أفضلَ هذه الأمة بعد نبيِّنا محمدٍ صلى الله عليه وسلم أبو بكرٍ الصِّدِّيقُ ثم عمرُ ثم عثمانُ ثم عليٌّ رضوان الله عليهم أجمعين لقوله تعالى وَالسَّابِقُونَ السَّابِقُونَ (١٠) أُولَئِكَ الْمُقَرَّبُونَ (١١) فِي جَنَّاتِ النَّعِيمِ (١٢) وكلّ مَن كان أسبَقَ فهو أفضلُ ويحبهم كلّ مؤمنٍ تقيٍّ ويبغضهم كلُّ منافقٍ شقيٍّ

---

موږ اقرار کوو په دې سره چې بهتر ددې امت ورسته تر نبي عليه السلام ابو بکر الصديق رضي الله تعالى عنه ده بيا عمر بيا عثمان بياعلي رضي الله تعالى عنهم اجمعين ځکه الله جل جلاله فرمايي(سابقين په دنيا کي ونيکيو ته سابقين دي و جنت ته همدا الله تعالى ته نژدې خلک دي په جنتو کي دنعمتو) او هر څوک چې مخکي وي هغه افضل ده او محبت کوي له دوی سره هر مؤمن پرهيزکاره او بغض کوي له دوی سره هر منافق بد بخته

تشريح

(نقرُّ بأَنَّ أفضلَ هذه الأُمَّة بعد نبيِّنا)دتولو اهل السنة والجماعة پر دې خبره اتفاق ده چې افضل ددې امت ورسته تر نبي عليه السلام ابو بکر صديق رضي الله تعالى عنه ده، ډير معتزله او ټول روافض بيا وايي چې افضل ددې امت حضرت علي رضي الله تعالى عنه ده، اماميه بيا وايي چې له حضرت علي رضي الله تعالى عنه او دده د دو زامنو چې حسن او حسين رضي الله تعالى عنهما دي او دفاطمې رضي الله تعالى عنها او ديو څو نورو صحابه و څخه چې هغه هم لږ کسان دي بغير نور ټول صحابه مرتد سوي دي ورسته تر نبي عليه السلام نعوذ بالله من ذلک القول

زموږ دليل حديث دامام بخاري رحمة الله عليه ده(کنا في زمن النبي صلى الله عليه و سلم لا نعدل بأبي بکر أحدا ثم عمر ثم عثمان)يعني موږ په زمانه کي دنبي عليه السلام هيڅوک نه برابره وی له ابو بکر رضي الله تعالى عنه سره

په فضيلت کې بيا دعمر سره بيا دعثمان سره رضي الله تعالى عنهما

**تقرُّ بأن العبدَ مع أعمالِه وإقرارِه ومعرفتِه مخلوقٌ فلمَّا كان الفاعلُ مخلوقاً فأفعالُه أولى أن تكون مخلوقةً**

موږ اقرار کوو په دې سره چې بيشکه بنده سره له خپلو اعمالو او اقرار او معرفت سره مخلوق ده نو هر کله چې فاعل مخلوق وي نو افعال خونې په طريقه اولى سره مخلوق دي

## تشريح

(تقرُّ بأن العبدَ مع أعمالِه وإقرارِه ومعرفتِه مخلوقٌ) اهل السنة والجماعة پر دې خبره سره متفق دي چې دټولو افعالو دبنده او دحيوان خالق الله تعالى ده له ده څخه پرته بل خالق نسته او دا مذهب ده دصحابه کرامو او تابعينو رضوان الله تعالى عليهم اجمعين.معتزله وايي چې بنده موجد ده دخپلو افعالو اختياريه و معتزله و په ابتداء کې دا دلاورې نه کوله چې دبنده تسميه په خالق وکړي بلکه موجد به يې ورته ويل کله چې جبائي پيداسو نو هغه وويل چې دايجاد او خلق تر منځ فرق نسته نو دبنده تسميه ئې وکړه په خالق سره او وې ويل چې بندګان دخپلو افعالو اختياريه و خالقين دي باک ئې نه وکړيه مخالفت داجماع. جبريه چې رئيس ددوى جهم بن صفوان ترمذي ده وايي چې قدرت دبنده لره هيڅ تاثير نسته په افعالو کې ددوى نه دخلق او نه دکسب بلکه افعال دبنده کانو ټول اضطراري دي لکه حرکات دجماداتو .

(فلمَّا كان الفاعلُ مخلوقاً فأفعالُه أولى أن تكون مخلوقةً)ځکه په دې کښې اظهار دکمال قدرت دالله تعالى سته په دې سره چې الله تعالى قادر ده پر افعالو دبل چا دارنګه په دې سره امتياز کيږي دقدرت قديمه له قدرت حديثه څخه

دارنګه ښکاره کيږي په دې سره داچې الله جل جلاله متصرف ده په مقدوراتو کې دبنده او مستقل ده په حاصلولوکې دمراد دبنده

څيبوکتابوکې ذکر سوي دي چې امام اعظم رحمه الله تعالى دبو معتزلي سره مناظره کوله نو امام صاحب ورته ويل ووايه ياء هغه وويل ياء بيا امام صاحب ورته وويل ووايه حاء هغه وويل حاء بيا امام صاحب ورته وويل بيان کړه مخرجونه ددوی هغه بيان کړو نو امام صاحب ورته وويل که ته چيري دخپل فعل خالق يې نو راوباسه ياء له مخرج څخه دحاء هغه معتزلي چپ سو او دجواب ورکولو قدرت ئې نه درلودی

نقر بأنَّ اللهَ تعالى خلقَ الخلقَ ولم يكن لهم طاقةٌ لأنهم ضعفاءُ عاجزون واللهُ خالِقُهم ورازِقُهم لقوله تعالى اللهُ الَّذِي خَلَقَكُمْ ثُمَّ رَزَقَكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ والكَسْبُ حلالٌ وجَمعُ المالِ من الحلال حلالٌ وجمعُ المالِ مُن الحرام حرامٌ. والناسُ على ثلاثة أصنافٍ المؤمنُ المُخلِصُ في إيمانه والكافرُ الجاحِدُ في كُفرِه والمُنافِقُ المُداهِنُ في نِفاقِه. واللهُ تعالى فرضَ على المُؤمِنِ العملَ وعلى الكافرِ الإيمانَ وعلى المُنافِقِ الإخلاصَ لقوله تعالى يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمْ يعني أيها المؤمنون أطيعوا وأيها الكافرون آمنوا وأيها المنافقون أخلِصوا

---

موږ اقرار كوو په دې سره چې الله تعالى پيداكړى ده مخلوق او نه وو دوى لره طاقت خكه دوى كمزوري او عاجزه دي او الله تعالى پيداكوونكى ده ددوى او رزق وركوونكى ده دوى لره خكه الله تعالى فرمايي(الله هغه ذات ده چې تاسي ئې پيدا كړي ياست بيائې رزق دركړيده بيا هغه تاسي مره كوي بيا هغه تاسي ژوندي كوي)او كسب كول جائز ده او حلال ده او جمع كول دمال په حلاله طريقه حلال ده او جمع كول دمال په حرام طريقه حرام ده او خلك پر درې قسمه دي يو مؤمن مخلص ده په خپل ايمان كي او دوهم كافر منكر ده په خپل كفر كي او دريم منافق مداهن ده په خپل نفاق كي او الله تعالى فرض كړى ده پر مؤمن باندي عمل او پر كافر باندي ايمان او پر منافق باندي اخلاص خكه الله تعالى فرمايي(يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمْ)يعني اى مؤمنانو اطاعت وكړى دالله تعالى او اى كافرانو ايمان راوړى او اى منافقانو اخلاص وكړى

## تشريح

(واللهُ خالِقُهم ورازِقُهم)رزق زموږ په نبز عبارت ده له غذاء څخه هغه كه حلاله وي او كه حرامه لكه چې فرمايي الله تعالى(وَمَا مِنْ دَابَّةٍ فِي الْأَرْضِ إِلَّا

عَلَى اللهِ رِزْقُهَا)هود_يعني په مځکه کي هيڅ داسي خوځنده شی نسته مګر دهغه رزق پر الله تعالى باندي ده، دمعتزله و په نبز رزق عبارت ده له ملک څخه نو حرام ددوی په نبز رزق نه بلل کيږي

(والكَسْبُ حلالٌ) که چيري انسان لره نفقه وي نو کسب کول ورته رخصت ده او که مجبوره وي او يا اهل او عيال لري نو بيا کسب کول پر ده باندي فرض ده حديث کي راځي(من طلب الدنيا حلالا استعفافا عن المسألة و سعيا على عياله و تعطفا على جاره لقي الله يوم القيامة ووجهه كالقمر ليلة البدر) يعني که چا طلب کړه حلاله دنيا ددې لپاره چي ځان وساتي له سوال کولو څخه او سعي وکړي پر خپل عيال باندي اومهرباني وکړي پر خپل همسايه باندي هغه به په داسي حال کي له الله تعالى سره ملاقي سي په ورځ دقيامت چي مخ به يې داسي وي لکه دڅوارلسم دشپي سپوږمی

همداسي دليل پر دې چي کسب حلال ده داده چي انبياء عليهم السلام هم متوکلين وو او هم کسب کوونکی څکه ادم عليه السلام زراعت يعني کښت کړي کوله ادريس عليه السلام خياط وو نوح عليه السلام نجاروو ابراهيم عليه السلام بزازوو يعني دکپړو کار ئې کوی

(يعني أيها المؤمنون أطيعوا وأيها الكافرون آمِنوا وأيها المنافقون أخلِصوا)دلته يوه شبهه واردېږي هغه داچي استعمال دتقوى په دې درو معناني و کي چي اطاعت اوايمان او اخلاص ده مخالف ده له مذهب سره دامام صاحب څکه استعمال به لې په دې معاني و په طريقه دحقيقت وي او يا به نوي-که په طريقه دحقيقت وي نو بيا خو عموم دمشترک لازميږي او دا جائز نده او که په طريقه دحقيقت نوي نوبيا خو لازميږي جمع په مابين کي دحقيقت او مجاز ددې شبهې جواب داده چي استعمال لې په طريقه دعموم مجاز ده څکه تقوى عبارت له دې چي انسان ځان وساتي له فواحشو او ناروا اعمالو څخه

په دې کښې شک نسته چې هرد يوه له دې معناکانو څخه اجتناب ده له يو ناروا عمل څخه

نقرُّ بأن الاستطاعةَ مع الفِعلِ لا قبلَ الفعلِ ولا بعدَ الفِعلِ لأنه لو كان قبلَ الفِعلِ لكان العَبدُ مُستغنياً عن الله تعالى وقتَ الفعل وهذا خِلافُ حكمِ النصِّ لقوله تعالى واللهُ الغَنِيُّ وَأنتُمُ الفُقَرَاءُ ولو كان بعدَ الفِعلِ لكان من المحال حصولُ بلا استطاعةٍ ولا طاقةٍ

---

موږ اقرار کوو په دې سره چې قدرت له فعل سره ده نه مخکې تر فعل ده او نه ورسته تر فعل څکه که چيرې وي مخکې تر فعل نو وي به بنده مستغني او بې پروا له الله تعالى څخه په وخت کې دفعل او دا خو خلاف دنص دقران ده څکه الله تعالى فرمايي(الله جل جلاله غني او بې پروا ده له تاسو څخه او تاسې محتاج ياست) او که چيرې ورسته تر فعل وي نو وي به له محال څخه حصول دفعل ببله قدرت څخه

تشريح

(نقرُّ بأن الاستطاعةَ مع الفِعلِ لا قبلَ الفعلِ ولا بعدَ الفِعلِ)استطاعة قدرة اوطاقة مترادف الفاظ دي چې منسوب سي وبنده ته زموږ په نبز قدرت د کار کولو مقارن او يو ځاي وي له فعل سره څکه که مقارن نوي نو يا به مخکې وي او يا ورسته داچې ورسته وي داخو باطل ده په اجماع سره څکه لازميږي حصول دفعل ببله استطاعة او قدرة څخه او دا محال ده او که مخکې سي بيا لازميږي استغناء دبنده له الله تعالى څخه او دا خلاف دنص دقران ده

معتزله وايي چې قدرت مخکې تر فعل وي ځکه که مخکې نوي نوبيا لازميږي مکلف کول دعاجزه او دا محاله ده ځکه الله تعالى فرمايي(لا يُكَلِّفُ اللهُ نَفسَاً إلَّا وُسعَهَا)البقرة_ خو ددې جواب داده چې له استطاعة ځخه کله کله اراده کيږي سلامتيا داسبابو او آلاتو دمکلف والی اعتماد پر دغه معنی داستطاعة باندې کيږي

نُقِرُّ بأن المسحَ على الخفَّينِ واجبُ للمُقيمِ يوماً وليلةً وللمسافرِ ثلاثةَ أيامٍ ولياليها لأن الحديث ورد هكذا فمَن أنكره يُخشى عليه الكفرُ لأنه قريبٌ من الخبرِ المُتواتر والقَصْرُ والإفطارُ في السَّفَرِ رُخصةٌ بنصِّ الكتاب لقوله تعالى وَإذا ضَرَبْتُمْ في الأَرضِ فَلَيسَ عَلَيكُمْ جُنَاحٌ أنْ تَقْصُرُوا مِنَ الصَّلاةِ وفي الإفطار قوله تعالى فَمَن كَانَ مِنكُمْ مَرِيضَاً أَوْ عَلَى سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِنْ أيَّامٍ أُخَرَ

موږ اقرار کوو په دې سره چې مسح پر موزوباندې واجب ده دمقيم لپاره يو شواروز او دمسافر لپاره درې شواروزه ځکه چې حديث کې راځي داځکه او څوک چې انکار وکړي نو پر هغه باندې ببره دکفرسته ځکه چې دغه حديث نژدې ده وحد د متواتر ته او قصر په لمانځه کې او ماتول دروژې په سفرکې رخصت ده په نص دقران سره ځکه چې الله تعالى فرمايي(او هرکله چې تاسې سفرکوئ په مځکه کې نو پر تاسوباندې هيڅ گناه نسته چې قصر وکړئ په لمانځه کې)او په افطارکې دروژې داقول دالله تعالى ده(نو هغه څوک چې وي له تاسو ځخه مريض اويا مسافر وي نو پر هغه باندې دې شمار له نورو ورځو ځخه

تشريح

(فَمَن أنكره يُخشى عليه الكفرُ لأنه قريبٌ من الخبرِ المُتواتر)په مبسوط کې راځي چې

ثبوت دمسح په هغه اثارو سوی ده چې مشهور دي نژدې دي وتواتر ته امام ابویوسف رحمه الله تعالی وایي چې نسخ دکتاب یعني قران په خبر دمسح رواده ځکه چې مشهور ده علا مه کرخي رحمه الله تعالی وایي څوک چې انکار وکړي له مسح څخه پر موزو باندي موږ ببریږو پر ده باندي له کفره خوارج او امامیه وایي مسح پر موزو باندي روا نده

(والقَصْرُ والإفطارُ فِي السَّفَرِ رُخصةٌ) مراد دامام اعظم رحمه الله تعالی په دي سره داده چې داعقیده درلودل حق ده چې تبدیل او تاخیر په احکامو کي دشرع راځي په اعتبار دمصالحو دبندگانو . رخصت هغه حکم ده چې بنا وي پر عذرو دبندگانو او عزیمت هغه ده چې حکم اصلي وي بنا نوي پر عذرو دبندگانو

نقرُّ بأن الله تعالى أمرَ القَلَمَ بأن يكتُبَ فقال القلمُ ماذا أكتُبُ يا ربّي فقال الله تعالى اكتُبْ ما هو كائنٌ إلى يوم القيامة لقوله تعالى وَكُلّ شَيْءٍ فَعَلُوهُ فِي الزُّبُرِ وَكُلّ صَغِيرٍ وَكَبِيرٍ مُسْتَطَرٌ

---

موږ اقرار کوو په دې سره چې الله تعالی امرکړو قلم په دې چې ولیکه نو قلم وویل څه ولیکم اي ربه زما وویل الله تعالی ولیکه هر هغه شی چې کېدونکی ده تر ورځ د قیامت پورې ځکه الله جل جلاله فرمایي(هر کار چې دوی کړیده په کتابو کې ده اوهر کوچنی او لوی عمل لیکل سوی ده

تشریح

(بأن الله تعالى أمرَ القَلَمَ بأن يكتُبَ فقال القلمُ ماذا أكتُبُ يا ربّي فقال الله تعالى اكتُبْ ما هوالخ)دعبد الله بن عباس رضي الله تعالى عنهما په روایت کې راځي چې لو مړی هغه شی چې الله جل جلاله پیدا کړ هغه لوح محفوظ وو هغه له

سپيني ملغلري څخه وه او قوائم يعني پښې دهغه له سرو ياقوت څخه وي لوی والی دهغه دونه وو چې بيان ئې نسي کيدای او الله تعالی قلم پيدا کړ له جوهر څخه اوږدوالی ئې په مسافه دپنځو سوو کالو وه ژبه دهغه چاک وه(يعني نوک ئې)را وتلو له هغه څخه نور لکه چې راوزي ددنيا له قلمانو څخه رنګ او سياهي بيا اواز وکړل سو دي قلم ته چې وليکه نو هغه وليکل ټول هغه شيان چې هغه موجوديږي تر ورځې دقيامت پوري .

نقرُّ بأن عذابَ القبرِ كائنٌ لا محالة وسؤالَ مُنكَرٍ ونكيرٍ حقٌّ لورود الأحاديث والجنّةَ والنارَ حقٌّ وهما مخلوقتان لافناء لهما لقوله تعالى في الجنة أُعِدَّتْ لِلمتّقِينَ وفي حقّ النار أُعِدَّتْ لِلكافِرِينَ خلقهما اللهُ للثواب والعقاب والميزانَ حقٌّ لقوله تعالى وَنَضَعُ المَوَازِينَ القِسْطَ لِيَوْمِ القِيَامَةِ وقراءةَ الكُتُبِ حقٌّ لقوله تعالى اقرَأْ كِتَابَكَ كَفَى بِنَفْسِكَ اليَوْمَ عَلَيْكَ حَسِيباً

موږ اقرار کوو په دي سره چې دقبر عذاب ثابت ده خامخا او سوال دمنکر او نکير حق ده ځکه وارد سوي دي احاديث اوجنت او دوزخ حق دي او دواړه پيدا سويدي فناء کبدل نسته دوی لره ځکه الله تعالی فرمايي په حق کي دجنت(تيار سوی ده لپاره دمتقيانو)اوپه حق کي ددوزخ فرمايي(تيار سوی ده لپاره دکافرانو)پيداکړيدي دواړه الله تعالی لپاره دثواب او عذاب او تلل حق دي ځکه الله تعالی فرمايي(او موږ به کښيږدو ترازوګان دعدل په ورځ کي دقيامت) او ويل دعملنامو حق دي ځکه الله تعالی فرمايي(ووايه خپله عمل نامه نن دخپلي محاسبي لپاره ته په خپله کافي يې .

## تشریح

(نقر بأن عذابَ القبرِ كائنٌ لا محالة وسؤالَ مُنكَرٍ ونكيرٍ حقٌ لورود الأحاديث)
بنيادي خبره په دې مسائلو كې داده چې هر هغه شى چې دليل سمعي وربانديي
وارد وي او في ذاته ممكن وي نو پرهغه باندي تصديق كول واجب دي شک
نسته په دې كښې چې دغه شيان چې په پورته عبارت كې ذكر سويدي ټول
ممكن دي في ذاتها او دلائل سمعيه هم وارد دي په دې شيانو كې نو واجب ده
چې تصديق وكړو دعذاب قبر لپاره دكافرانو او دخينو ګناه كارانو مؤمنانو
همدامې سوال دنكير او منكر او جنت جهنم ميزان او قرائة الكُتب
(والجنّةَ والنارَ حقٌ وهما مخلوقتان) يعني جنت اودوزخ حق اوثابت دي پيداسوى
دي موجود دي في الحال نه فناء كيږي بلكه هميشه به وي او همدامې به
عذاب او ثواب په جهنم او جنت كښي هميشه وي دلالت كوي پر دې خبره
باندي داقول دالله تعالى ( وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ أُعِدَّتْ لِلْمُتَّقِينَ
(١٣٣)آل عمران_يعني(يو له بله تلوار وكړئ)هغه جنت ته چې پلن والى ئې
داسمانو اومځكې په اندازه ده تيار كړل سوي ده لپاره دمتقيانو فَاتَّقُواالنَّارَ
الَّتِي وَقُودُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ أُعِدَّتْ لِلْكَافِرِينَ (٢٤) البقرة_ يعني نو وبېرېږئ
له هغه اورڅخه چې خاشاک دهغه انسانان اوډبري دي تيارسوى ده لپاره
دكافرانو

په دې اياتوكې الله جل جلاله دجنت او جهنم دواړو په حق كې صيغې
دماضي ويلي دي او دا دلالت كوي پر دې باندي چې موجود دي في الحال
(وَنَضَعُ الْمَوَازِينَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيَامَةِ) په طريقه اوكيفيت كې دتللو درې قوله
دي اول قول داده چې صحيفې داعمالو به تلل كيږي نو ښودل كيږي په
صحيفې دنيكيو په يوه تله كې اوبديو دا په بله تله كې اوبردي باندي جمهور
علماءدي

دوهم قول داده چې الله جل جلاله به اجسام ورکړي ودې اعمالو ته وبه کرزوي نيکي اجسام نورانيه اوبدي اجسام ظلمانيه اوبيا به ئې تول وکړل مې ددوی دريم قول داده چې نفس انسان به تلل کيږي

اوبعضې علماء ويلي دي چې ميزان عبارت له هغه شي څخه چې په هغه سره پيژندل کيږي مقدار او اندازه دشيانو عقل قاصر ده له ادراکه دکيفيته ددې حکمت په تول کې داعمالو سره له دې چې الله تعالی ته معلوم دي هرڅه داده چې ښکاره کړي خپل عدل وخلقوته په عذاب ورکولوکې، همدامې ښکاره کول دفضل خپل په عفوه کې وبند ګانوته اوپه زيادت کې دثواب ودوې ته

## خوشخبری

**نُورُ الیَقِین دنوی او اسان نهمه تعلیق سره چاپ سو**

# نُورُ الیَقِین

فِي

# سِیرَةِ سَیِّدِ المُرسَلِین ﷺ

تالیف الشیخ مُحمّد الخِضری رحمه الله

مع التعلیق المبین

لأحقر العباد أبی منصور

عبد الکریم شهید زاده

طبعة جدیدة

